


# دافغانســتان اسـلامي امارت

## د عدلي حقوقي محکمو

## د اجراآتـو

# اصولنامه

پښتو او فارسی

**دطبع نیټه : ( ۱۴۳۵ ) هق کال . د شعبان میاشت**

د تمیز عالي ریاست خپرونه

## د عدلي محکمو د اجرآتو اصولنامې فهرست



پای

بسم الله الرحمن الرحیم

**دعدلي حقوقي محکمو داجرآتو اصولنامه**

**عمومي مواد** :

**۱ـ ماده** :

د قضا اساسي ارکان چې یوه محکمه جوړوي په لاندي ډول دي : (۱)

**الف** ـ قاضي : هغه څوک دی چې حکم کوي . (۲)

**ب** . محکوم له : هغه څوک دی چې د هغه په ګټه حکم صادر شوی وي . (۳) .

**ج** محکوم علیه : هغه څوک دی چې دهغه په خلاف حکم صادر شوی وي . (۴)

**د** : محکوم به : هغه شی دی چې د حکم موضوع وي . (۵) .

**هـ** : حکم : د قاضي قضاوت دی . (۶) .

**و** : د حکم طریق : د قرار او فیصلې د صادرولو څرنګوالی او ډول دی . (۷) .

**۲ـ ماده** :

د شرع حاکم ( قاضي ) هغه څوک دی چې د امیرالمؤمنین یا دهغه دنائب له خوا نظر دده د اهلیت او لیاقت ته د را غلیو =

بسم الله الرحمن الرحیم

**اصولنامه اجراآت محاکمات حقوقی عدلی**

**مواد عمومی** :

**مادۀ ۱** :

ارکان اساسی قضاء که یک محکمه را تشکیل میدهد قرارآتي است : (۱)

**الف** . قاضی شخصی است که حکم میکند (۲)

**ب**. محکوم له: شخصی است که به نفع او حکم شده باشد . (۳)

**ج** محکوم علیه : شخصی است که به ضرر او حکم شده باشد . (۴)

**د** . محکوم به : چیزی است که موضوع حکم قرار گرفته باشد . (۵)

**هـ**. حکم : قضاوت ( قاضي ) است (۶)

**و**. طریق حکم: طرز و روش اصدار قرار و فیصله است. (۷)

**مادۀ ۲** :

حاکم شرع ( قاضی ) کسی است که از طرف امیرالمؤمنین ویانائب نظر باهلیت و لیاقتش برای حل و فصل =

(۱) : دررالحکام كِتَابُ الْقَضَاء جـ (٤) صـ (٥٧١) .
وشرح المادة (۱۷۸۴) الاتاسی جـ (۶) صـ (۹) .
(۲) : الْمَادَّةُ (۱۷۸۵) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .
(۳) : الْمَادَّةُ (۱۷۸۹) . مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .

(۴) : الْمَادَّةُ (۱۷۸۸) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .
(۵) : الْمَادَّةُ ( ۱۷۸۷ ) . مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .
(٦) الْمَادَّةُ (۱۷۸٦) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .
(۷) : شرح المادة (۱۷۸۴) الاتاسی جـ ( ۶) صـ (۱۱-۱۱۰) جـ (۵) صـ (۳۸۹) .

=دعوو د حل او فصل دپاره مقــرر يږي او دشرعي مقرراتو له مخي فيصله كوي (١) .

**٣ـ ماده :**

قاضـــي ته ښاى چـــې دفقه داحكامو په تيره بيا دحنفي فقه په موضوعاتوكــــې پوره عالم وي او د راغليو دعوو پرقطع او د احكامو او مقرراتو په تطبيقاتو كې مقتدر او باخبروي . (٢) .

**٤ـ ماده :**

قاضي بايد دخلقو له عرف اوعاداتو څخه خبروي دخلقو داحوال تو پيروكړاى شي . (٣)

**تبصره :**

قاضي ته لازم ده چـــې د مملكت له اصولناموپه تـــيره بيا له هغو اصولنامو چې دعدليې په چاروپوري اړه لري پوره معلومات ولري . (٤)

**٥ ـ ماده :**

د صغير، ليوني ، معتوه (مختل العقل ) كاڼه ، ړانده ، قضاوت جائز نه دی . (٥)

**تبصره:**

ديوه غوږكوڼ ديوې سترګي ړوند دپورته مادې له حكم څخه مستثنى دی. (٦)

=دعاوى وارده تقرر يافته وطبق مقررات شرعيه فيصله مينمايد . (١)

**مادۀ ٣ :**

قاضـى را مـناسب است درموضوعات احكام فقه بالخاصه فقه حنفى كاملا عالم وبــر قطع دعاوى وارده ، وبر تـطبيقات احكام ومقررات مقتدر وباخبرباشد . (٢)

**مادۀ ٤ :**

قاضى بايد ازعرف وعادات مردم باخبر باشد واحوالات مردم را تميز بتواند .

**تبصره:**

قاضى را لازم است از اصولنامه هائيكه مربوط بامور عدليه است كامل معلومات داشته باشد . (٣)

**مادۀ ٥ :**

قضاوت صغير ، مجنون،معتوه ( مختل العقل ) كر ، وكور جائز نيست . (٤)

**تبصره:**

كر يک گوش ، وكور يک چشم ازحكم ماده فوق مستثنى است . (٦)

(١) : الْمَادَّةُ ( ١٧٨٥ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ . دررالحكام جـ (٤) صـ (٥٧٢) .
(٢) : الْمَادَّةُ ( ١٧٩٣ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .
(٣) : شرح الْمَادَّةِ ( ١٧٩٢ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (٥٨١) .
(٤) : شرح الْمَادَّةِ ( ١٧٩٣ ) الاتاسي جـ (٦) صـ (٣٢) .
(٥) : الْمَادَّةُ ( ١٧٩٤ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ . ومعين القضات والمفتيين صـ (٦٣) .
(٦) : المادة (١٧٩٤) الاتاسي جـ (٦) صـ (٣٤) .

**۶ ـ ماده :**
لازم دی چې دقاضي عقل ، صلاح ، زکاوت دقبول او اعتمادموجب وي (۱)

**۷ ـ ماده :**
قاضي ته لازم دی چې له هغو افعالو حرکاتو اوقولونو څخه چې دقضا حیثیت له منځه وړي ، یا دتهمت او بدګمانۍ موجب وګرزي ، جدًا ځان وژغوري . (۲)

**۸ ـ ماده :**
قاضي مجبوردی چې تل ددعوی کوونکو په منځ کې د قضا په متعلقو چاروکې عدل او انصاف له لاسه ور نکړي . (۳)

**۹ ـ ماده :**
قاضي دخپل خاص اجیر ، شریک ، منکوحې ، او د خپلو اصولو ، فروعو په باب کې ، همدا راز دهغو کسانو دپاره چې دهغو دوژوند وسیله دده له نفقې څخه تامین کیږي ، شرعا له قضاوت څخه ممنوع دی . (۴)

***

**ماده ۶ :**
لازم است عقل ، صلاح و زکاوت قاضی موجب قبول و اعتماد باشد . (۱)

**مادۀ ۷ :**
لازم است قاضی ازآن افعال ، حرکات ، واقوالیکه حیثیت قضاء را از بین ببرد ویا موجب تهمت وبدگمانی گردد جدًا اجتناب نماید . (۲)

**مادۀ ۸ :**
قاضی مجبور است همیشه میان متخاصمین در امور متعلقه به قضاء عدل ومساوات را ازدست ندهد . (۳)

**مادۀ ۹ :**
قاضی درباب اصول ، وفروع ، ومنکوحه وشریک واجیرخاص خودوبرای کسی که امرار حیات وی ازنفقه او تامین میشود شرعا ازقضاوت ممنوع است . (۴) .

*****

***

(۱) : الْمَادَّةِ (۱۷۹۲) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ . ودررالحكام جــ (۴) صــ (۵۸۱) .
(۲) : الْمَادَّةُ ( ۱۷۹۵ ) . مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .
(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱۷۹۹ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .
(۴): الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۸ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .

**۱۰ ـ ماده** :
قاضي نشي کولای چې په خپلوقضايي چاروکې بې موجبه ځنډ اوتاخيروکړي . (۱)

**تبصره** : که قاضي دحکم داسبابو له موجوديت نه وروسته بې موجبه په حکم کې تاخير وکړي ، نو شرعا برسيره په تعزيري مجازاتو دعزل مستحق دی (۲)

**۱۱ ـ ماده** :
دقاضي قضا په زمانه ، محل ، موضوع او حادثه کې تقييد ، تخصيص او تجزيه قبلولای شي .

**تبصره** : که دقاضي قضاوت په کومه ټاکلې محکمه ، يا په ټاکلي محل مقيدکيږي له هغه نه دباندي قضاوت نشي کولای . (۳) .

**۱۲ ـ ماده** :
قاضي نشي کولای چې بې له مقرراتو او د امارت له اجازې بل چاته دقضاوت واک ورکړي . (۴)

**۱۳ ـ ماده** :
دقاضي وظيفه قضاوت ( حکم ) او د مفتي وظيفه فتوی ( د حکم اخبار ، اظهار او مشوره ورکول ) دي . (۵) .

(۱) : الْمَادَّةُ (۱۸۲۸) . مجلة الاحكام . شرحها دررالحكام .
(۲) : شرح المادة (۸۰ ) دررالحكام .جـ (۱) صـ (۸۰) . وشرح ( الْمَادَّةُ (۱۸۲۸) دررالحكام شرح مجلة الاحكام .
(۳) : الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .

**مادۀ ۱۰**:
قاضی نمیتواند در امور قضائی خود بی موجب تعطیل وتاخیر کند . (۱)

**تبصره**: اگر قاضی پس ازموجودیت اسباب حکم بـی موجب تاخیر درحکم نماید شرعا علاوه بر مجازات تـعزیری مستحق عزل است . (۲)

**مادۀ ۱۱**:
قضاء قاضی بزمان ومحل وموضوع وحادثه تقیید وتـخصیص وتـجزیه را قبول میتواند .

**تبصره** : اگر قضاوت قاضی بکدام محکمه متعینه یا محل متعین مقید میگرددخارج آن قضاوت نمیتواند (۳)

**مادۀ ۱۲**:
قاضـي نـمیتواند بـدون مقـررات و اجـازه امارت دیگـري را عوض خود صلاحیت قضاوت بدهد . (٤)

**مادۀ ۱۳**:
وظیفه قاضـی قضاوت ( حکم) است ووظیفه مفتـی فتـوی ( اخبار واظهار حکم ومشوره دادن ) است . (٥)

(۴) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۵ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .
(۵) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱٦۹٦ ) دررالحكام جزء (۴) ص (۳۸۸) شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۱۱ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦۱۹) . درالمختار على هامش ردالمحتار جـ (۱) صـ (۵۵)

**۱۴ـ ماده :**
دقضاوت دصحت شرط په حقوق العباد كې د شرعي دعوى تقدم دی . (۱)

**۱۵. ماده :**
په حق الله ( عامه حقوقوكې ) دعوى او ددعوى صحت شرط نه دی بلكي شاهد په هغې كې د مدعي حيثيت او مدعي د شاهد حيثيت لري . (۲)

**۱۶ـ ماده :**
كــه مړي دخپلو صغيرانــو دپاره وصي نه وي درولی يا صغير مدعي او مدعـي عليه وي ، او وصي ونه لـــري ، قاضـي واک لـري چــې دهغو دپاره وصـي مقــرر كــړي ، او د وصايــت د تعليماتنامې له موادو سره سم اجرا آت وكړي . (۳)

**۱۷ـ ماده :**
كه مړی وارث ونه لري اوكوم شخص په هغه باندي دپور دعوى وكړي قاضي كولای شي چې له شرعي صلاحيت سره سم ددعوى وكيل وټاكي چې دا معامله حل او فصل كړي . (٤)

**مادۀ ۱۴:**
شــرط صحت قضاوت درحقوق عباد تقدم دعواى شرعى است . (۱)

**مادۀ ۱۵:**
در حق الله ( حقوق عامه ) دعـوى وصحت دعــوى شــرط نيست بلكى شاهــد درآن حيثيت مدعـى ومدعى حيثيت شاهد را دارد . (۲)

**مادۀ ۱۶:**
اگر متوفى براى صغار خود وصى نصب نكرده باشد ، يا صغير مدعـى ومدعى عليه باشد و وصى نداشته باشد قاضى صلاحيت دارد كه براى آنها وصى نصب كند و بر طبق مواد تعليماتنامهء وصايت اجراآت نمايد (۳)

**مادۀ ۱۷:**
اگرمتوفى وارث نداشته باشد وشخصى برعليه اودعوى دين كند قاضى ميتواند حسب صلاحيت شــرعى وكيل دعوى انتخاب كند ومعامله متذكره را حــل وفصل نمايد . (۴)

(۱) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۲۹ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ . الفتاوى الكاملية صـ (۱۰٦) .
(۲) : شرح الْمَادَّةُ (۱٦۹٦) ...التاسى جـ (۶) صـ (۱۳۳) .
(۳): شرح الْمَادَّةُ (۷۳٤) دررالحكام جـ (۲) صـ (۱۶۲) .الهندية جـ (۲) صـ (۱۱) .
(۴) : الهندية الباب التاسع جـ (٦) صـ (۱٥٤) والباب الثلاثون جـ (۳) صـ (٤۲۹) .

**۱۸ـ ماده :**
قاضي نشي کولای ددعوی د دوران په وخت کې مدعي او مدعي علیه او شاهدانو ته تلقین وکړي . (۱)

**۱۹ـ ماده :**
قاضي نشي کولای چې د حنفی مذهب په خلاف او یا په ضعیفو او مرجوحه مسائلوعمل وکړي ،کنه دده د فیصلې د ماتیدو موجب به شي . (۲)

**تبصره :**
البته د ضرورت په مهال دي دقضا لوړ مقام ته مراجعه وشي .

**۲۰ـ ماده :**
قاضي نه شي کولای چې په کومه موضوع کې دموقوف شوي قاضي قول ته اعتبار ورکړي که څه هم بل شخص دشهادت په ډول له ده سره وي . (۳)

**تبصره :**
د ودیعت ، او د وقف دمنافعو موضوع له پورتنۍ مادې څخه مستثنی ده . (۴) .

**مادۀ ۱۸ :**
قاضی نمیتواند در وقت دوران دعوی به مدعی یا مدعی علیه یا شهود تلقین کند . (۱)

**مادۀ ۱۹ :**
قاضی نمیتواند خلاف مذهب حنفی یا به مسائل ضعیفه و مرجوحه عمل نماید والا موجب نقض فیصله اش خواهد شد . (۲)

**تبصره :**
البته در وقت ضرورت به مقام عالی قضاء مراجعه نماید .

**مادۀ ۲۰ :**
قاضی نمیتواند درکدام موضوع بقول قاضی معزول اعتباربدهداگرچه شخص دیگر بطور شهادت باوی باشد . (۳)

**تبصره :**
موضوع ودیعت ، ومنافع وقف ازماده فوق مستثنی است . (۴) .

(۱) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۱٦ ) دررالحکام جـ (٤) صـ (٦۲٥) الهداية كتاب ادب القاضي جـ (۳) صـ (۱۳٦).
(۲) : شَرْحَ الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) دررالحکام جـ (٤) صـ (٦۰٥) .
(۳) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۱٤ ) دررالحکام جـ (٤) صـ (٦۲۳) .
(۴) : اللباب شرح الكتاب , جـ (۱) صـ (۳۸۱) . الهداية كتاب ادب القاضي فصل في الضمان . جـ (۳) صـ (۱۳٥) .
جـ (٤) صـ (٦۲۳) دررالحکام ط بيروت

**۲۱ـ ماده :**
قاضي كولاى شي دهغه محل عالم او مفتي چې خلقو ته د خداى او دخداى دبندګانو د حقوقو د اسقاط لاره ورزده كوي مخنيوى وكړي . (۱)

**۲۲ـ ماده :**
قضا يو داسي حكم دى چې د شرع له حاكم څخه د هغې موضوع په نسبت په مخصوصو الفاظو او كلماتو صادر يږي ، چې دهغې د لزوم حقيقت او واقعيت قاضي ته ثابتيږي ، يا هغه ده چې قاضي مدعي ، له جګړې څخه په مخصوصو الفاظو منع كوي .
دقاضي حكم په دې ډول الفاظواداكيږي : حكم مي وكړ چې ته ( ... ) په دې ( ... ) موضوع كې ملزم او ملامت يې او د مدعى بها په سپارلوحكم تصريح كوي يا حكم مي وكړ چې په مدعى به كې په مدعي عليه باندي غرض مه لره .
لومړي ډول قضاته د الزام قضا اودويم ډول قضاته دترک اومنع قضاوايې . (۲)

**مادۀ ۲۱:**
قاضی میتواند ازآن مفتی وعالم محیل که بمردم راه اسقاط حقوق خدا بندگان خدا را می اموزد جلو گیری نماید . (۱)

**مادۀ ۲۲:**
قضاء حکمی است که ازحاکم شرع بالفاظ وکلمات مخصوصه نسبت بآن موضوع صادر میشود که لزوم حقیت وواقعیت آن نزد قاضی ثابت میگردد آن است که قاضی مدعی را ازمنازعه بالفاظ مخصوصه امتناع مینماید حکم قاضی باین گونه الفاظ ادآء میشود :
حکم نمودم یا حکم کردم که تو ( ... ) در موضوع ( ... ) ملزم و ملامت میباشی و حکم خود را بسپردن مدعی بها تصریح مینماید ، یا حکم کردم که درخصوص مدعی به بمدعی علیه غرضدار مباش .
قضاء نوع اول راقضاء الزام وقضاء نوع دویم را قضاء ترک ومنع میگویند . (۲)

(۱) : الْمَادَّةُ ( ۹۶۴ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .وجوهرة النيرة ، كتاب الحجر جــ (۲) صــ ( ۴۲۹) .
(۲) : الْمَادَّةُ ( ۱۷۸٦ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .

**۲۳ـ ماده :**

څرنګه چې قضا د تقييد، تخصيص او تجزيــې وړ ده ، نو د ځينو حوادثــو او قضا ياؤ استثناء هم قبلوي . (۱)

**۲۴ـ ماده :**

قضا او عزل يې د تعليق وړدي . (۲)

**۲۵ـ ماده :**

قضايـــې حکم په محکوم عليه پوري منحصر دی . (۳) .

**تبصره :**

نــسب ، نکاح او وقف له هغــې څخه مستثنی دي . (۴) .

**۲۶ـ ماده :**

قضا د استحقاق په دعوی کې له مدعي عليه څخه هغه چاته چې مالکيت ورڅخه استفاده شوی دی تجاوزکوي (۵) .

**مادۀ ۲۳:**

چنانکه قضاء قابل تقييد وتخصيص وتجزيه ميباشد استثنآء بعضی حوادث وقضايا را نيز قبول ميکند . (۱).

**مادۀ ۲۴:**

قضاء وعزل آن قابل تعليق ميباشد (۲) .

**مادۀ ۲۵:**

حکم قضائی منحصر به محکوم عليه است . (۳).

**تبصره:**

نسب ، نکاح ، وقف ازآن مستثنــی است . (۴) .

**مادۀ ۲۶:**

قضاء در دعوی استحقاق ازمدعــی عليه بکسی که مالکيت ازآن استفاده شده تجاوز مينمايد . (۵) .

(۱) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) وشرح الْمَادَّةُ (۱۸۰٤) .

(۲) : الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .وشرح المادة (۱۸۰٤) دررالحکام جــ (۴) صــ (۶۰۹) .

(۳) : جواهرالروايات صــ (٤۱) .الاشباه والنظائر صــ (۱۸٤) .

(۴) : جواهرالروايات صــ (٤۱) .الاشباه والنظائر صــ (۲۱۹) .

(۵) :الفتاوی الکاملية صــ (۱۰۹) .

**۲۷ ـ ماده :**
هغه قضائي حكم چې برعليه د ځينو ورثه ؤ صادريږي په حقيقت كې قضا پركل ورثه ده . (۱).

**۲۸ ـ ماده :**
د قضا حكم چې د يوه وارث په ګټه وي لكه د مړي پور چې د كوم شخص په غاړه ثبوت شي ، نو دقضا حكم د ټولي ورثې د پاره دى . (۲) .

**۲۹ ـ ماده :**
كه د مدعي يا مدعي عليه او قاضي په منځ كې دنيوي عداوت ، لكه قذف ( ښكنځل ) جرح ، قتل ، او ضرب پيښ شي د قضا وت مانع دى ، په دې ډول موضوعاتو كې بايد قاضي قضاوت ونه كړي . (۳) .

**۳۰ ـ ماده :**
قضأ مظهره اوملزمه ده نه مثبته ، محكوم به په حقيقت كې ثابت امر دى او قاضي دهغه اظهار كوي . (٤) .

**مادۀ ۲۷:**
حكم قضائی كه برعليه بعضی از ورثه صدور می يابد در حقيقت قضاء برهمه افراد ورثه است . (۱)

**مادۀ ۲۸:**
حكم قضاء كه به مفاد يكی از ورثه باشد مانند دين متوفی كه برذمه شخصی ثبوت شود حكم قضاء برای كل ورثه است . (۲)

**مادۀ ۲۹:**
عداوت دنيوی مانند قذف ( دشنام ) جرح ، قتل ، ضرب ، اگر بين مدعی يا مدعی عليه وقاضی وقوع يابد مانع قضاوت است درهمچو موضوعات بايد قاضی قضاوت ننمايد . (۳)

**مادۀ ۳۰ :**
قضاء مظهر وملزم است نه مثبت محكوم به فی الحقيقت امر ثابت است وقاضی آنرا اظهار مينمايد (٤)

(۱) : الفتاوى الهندية الباب الثاني عشر في دعوى الدين جـ (٤) صـ (۱۰۷) ط بيروت .والفتاوي الكاملية صـ ( ۱۱۲)
(۲) : الْمَادَّةُ ( ١٦٤٢ ) .مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .
(۳) : شرح المادة (۱۷۹٤) دررالحكام جـ (٤) صـ (۵۸۴) . رد المحتار , مطلب في قضاء العدو جـ (٤) صـ (۳۳٤) .
(۴) : ردالمحتار . مطلب اذا قضي القاضي واخطأ جـ (۴) صـ (۳۸۰) . و جـ (۴) صـ (۳۳۰) .

**۳۱ـ ماده :**
پر غائب شخص یا دهغه دپاره دحکم اصدار بې له کوم شرعي مصلحت څخه جائز نه دی . (۱)

**مادهٔ ۳۱:**
اصدار حکم برعلیه یا برله شخص غائب بدون کدام مصلحت شرعی جائز نیست . (۱)

**۳۲. ماده :**
دحنفي قاضي قضا د امام ابو یوسف یا امام محمد رحمهما الله چې د امام ابوحنیفه رحمه الله شاگردان دي په قول د حنفي مذهب مخالف نه بلله کیږي . (۲)

**مادهٔ ۳۲ :**
قضاء قاضی حنفی بقول امام ابویوسف یا امام محمد رحمهما الله که تلامذ ابوحنیفه رحمه الله مخالف مذهب حنفی شمرده نمیشود . (۲)

## محکوم له او محکوم علیه

**۳۳ـ ماده :**
محکوم له هغه څوک دی چې د قاضي حکم دده په مادي یا معنوي گټه صادر شي که مدعي وي یا مدعي علیه وي (۳)

**مادهٔ ۳۳ :**
محکوم له : کسی است که حکم قاضی بمفاد مادی یا معنوی او صادر شود ،مدعی باشد یا مدعی علیه . (۳)

(۱) : کتاب القضاء ردالمحتار مطلب المسائل التي یکون القضاء فیها علی الحاضر قضاء علی الغائب جـ (۴) صـ (۳۷۷) .
(۲) : مَطْلَبُ حُكْمِ الْحَنَفِيِّ الخ . ردالمحتار جـ (۳) صـ (۴۰۹) . جـ (٤) صـ (۳۷۲) . وشرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) ... جـ (٤) صـ (٦۰٤) دررالحکام .
(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱۷۸۹ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ ودررالحکام .

**۳۴ـ ماده :**
محکـوم علیه هغه څوک دی چـې دده دمقابل جانب د حق د اثبات یا حمایـې په غرض پرده باندي حکم صادریږي ، که مدعي وي یا مدعي علیه وي . (۱)

**۳۵ـ ماده :**
هغه څوک چـې اقـرار يې دمدعـي په مقابل کـې اعتبار ولـري ، دانکار په صورت کـې مدعي علیه کـیدای شي مدعي علیه دعین ( شــي ) په دعوی کې ذوالید دی . (۲)

**۳۶ـ ماده :**
محکوم له اومحکوم علــیه د محاکمو دحضور په لومړۍ مرحله کــې امتیاز کـیدای شــي ، مگـر کله کله ددې په عکس چــې مدعــي په عین حال کې مدعــي علیه او مدعــي علیه مدعـي گرځــي ، حتــی کله کله دا مــعکوس صورت هم خپل لومړني حالت ته اوړي . (۳)

**مادۀ ۳۴:**
محکوم علیه : کسی است که بغرض اثبات حق یاحمایه جانب مقابلش برعلیه اوحکم صادر میشود خواه مدعی باشد یا مدعی علیه . (۱)

**مادۀ ۳۵:**
کســی که اقرارش درمقابل مدعــی اعـتبار داشـته باشـد درصورت انکار مدعــی علیه شــده مــیتواند ، مدعی علیه در دعوی عــین ( شــی) شـخص ذوالید است . (۲)

**مادۀ ۳۶:**
محکوم له ومحکوم علیه در مرحله اول در حضور محاکم امــتیاز شـــده میتواند اما گاهی بالعکس که مدعی درعــین حال مدعــی علیه ، ومدعــی علیه ، مدعی میگردد ، حتی گاهی این صورت معکوس نیز بحالت اولی خود عودت میکند . (۳)

---

(۱) : الْمَادَّةُ ( ۱۷۸۸ ) مَجَلَّةُ الْأَحْکَامِ .
(۲) : الْمَادَّةُ ( ١٦٣٤ ) و ( ١٦٣٥ ) مَجَلَّةُ الْأَحْکَامِ . شرح المادة (١٦٣٣) دررالحکام جـ (٤) صـ (٢٢٧) .دررالحکام جـ (٤) صـ (٢٥٨) .
(۳) : الْمَادَّةُ ( ١٦٣٢ ) مَجَلَّةُ الْأَحْکَامِ .شرحها جـ (٤) صـ (٢٢٣) دررالحکام .

**۳۷ ـ ماده :**
د دعوو په انفصال کې محکوم له او محکوم علیه شخصا یا وکیل ، وصي ، ولي او دهغوی قیم د قاضي حضورته حاضرېدای شي . (۱) .

**۳۸ ـ ماده :**
صغیر، لېونی ، معتوه ،غائب ، محجور ( ممنوع التصرف ) او دهغو په شان بالذات له چا سره شرعي خصم نشي کېدای . (۲).

**۳۹ ـ ماده :**
ځرنګه چې د قضا دمحفل دتشکیل او دحکم دصحت دپاره دخصمینو حضور شرط دی نوځکه دمدعي مقابل جانب به هغه څوک وي چې دهغه له تصرف څخه دمالکیت استفاده کیدای شي او خپل تصرفات په مالکانه ډول ښکاره کړي . (۳).

**تبصره :**
دمودع، مستعیر تصرف اودهغو په شان له شرعي مخاصمې څخه مستثنی دي (۴).

**مادۀ ۳۷ :**
در انفصال دعاوی محکوم له ومحکوم علیه شخصًا ویا وکیل وصی ، ولی قیم شان نزد قاضی حاضر شده میتواند . (۱).

**مادۀ ۳۸:**
صغیر، مجنون ، معتوه ،غائب محجور ( ممنوع التصرف) وامثال شان بالذات باکسی خصم شرعی شده نمیتوانند(۲)

**مادۀ ۳۹ :**
چون برای تشکیل محفل قضاء وصحت حکم ، حضور خصمین شرط است لذا جانب مقابل مدعی کسی باشدکه از تصرف او استفاده مالکیت شده بتواند وتصرفات خود را بطور مالکانه اظهار نماید .(۳)

**تبصره :**
تصرف مودع ، مستعیر و امثال آن از مخاصمه شرعی مستثنی است (۴)

(۱): المادة : (۱۸۳۰) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .وشرح المادة (۱۷۸۹) جـ (٤) صـ (۵۷۷) دررالحكام .وشرح الْمَادَّةُ (۱۸۳۰) دررالحكام جـ (٤) صـ (۶۶۷).
(۲): الْمَادَّةُ (١٦١٦) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ . الهندية كتاب الدعوى الباب الاول جـ (٤) صـ (۲).
(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱۶۷۹ ) و ( ۱۸۳۰ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .
(۴) : الهداية , كتاب الوكالة جـ (۳) وشرح المادة (۱۶۳۷) جـ (۴) صـ (۲۳۷) .

**۴۰ ـ ماده :**

که څوک په هغه مال چې خرڅ شوی دی دملکیت ادعا وکړي ،نو په دې صورت کې که پیرودونکی ( مشتري ) هغه مال د پلورونکي ( بائع ) له لاسه قبض کړی وي ، نو پیرودونکی مدعي علیه دی د بائع حضورته کوم ضرورت نشته اوکه دپلورونکي په لاس کې وي نو دمحاکمې د پاره د دواړوحضور حتمي دی . (۱)

**۴۱ ـ ماده :**

که د ودیعت ، عاریت ، اجارې یا رهن دعوی په چا باندي اقامه شـــي نو د مستودع ، مستاجـر ، مرتهـن ، حضور ، سره له مودع ، معیر ، مؤجـر ، راهـن چې هریو له هغو څخه شرعـــي خصـم بلل کیږي ضروري دی . (۲)

**۴۲ ـ ماده :**

که کوم شی دچاپه لاس کې ودیعت ، مستعار، مأجـــور، مـــرهون وي اوبـــل شخص هغه غصب کړي نوهریو مستودع ، مستعیر ، مستأجر او مـــرتهن کولای شي چې په غاصب باندي خپله دعوی اقامه کړي =

**مادۀ ۴۰:**

ا گر شخصی برمالی که خریده شده ادعای ملکیت نمایـد درصورتـی که خـــریدار آن مال را از دست بائع قبض نموده باشدخریدار مدعی علیه میبا شد وبحضور بائع ضرورتی نیست ، واگردر دست بائع باشد بـــرای محاکمه حضور هردو حتمی است . (۱)

**مادۀ ۴۱:**

اگر دعوی ودیعت یا عاریت یا اجاره یا رهن برعلیه کسی اقامه شود حضور مستودع ، مستعیر ، مستاجر ، مرتهن با مودع ، معیر، موجر ، راهن که هریک از آنـــها را خصم شرعـی گفته مـیشود ضروری است . (۲)

**مادۀ ۴۲ :**

اگرچیزی بدست کسی ودیعت ،مستعار ماجور، مرهون باشد وشخص دیگر آن را غصب نماید هـــــرکدام مستودع ، مستعیر ، مستاجر ، مرتهن میتواند که برغاصب دعوی خود را اقامه نماید =

(۱): الْمَادَّةُ ( ١٦٣٦ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ الْعَدْلِيَّةِ .
(۲) : الْمَادَّةُ ( ١٦٣٧ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ الْعَدْلِيَّةِ .

= د مالک حضور ضرورت نه لري ، مګر که مالک يې دعوی وکړي او مدعی به له پورتني قراره د ذکر شويو کسانو په لاس کې وي د ټولو حضور ضروري دی . (۱) .

**۴۳ ـ ماده :**
مستودع ( هغه څوک دی چې امانت ده په لاس کې دی ) خصم ( مدعي عليه ) د خريدار کيدای نشي . (۲)

**۴۴ ـ ماده :**
مستودع خصم ( مدعي عليه ) د مودع د دائن ( هغه څوک دی چې مال امانت ورکوي ) کيدای نشي . (۳)

**۴۵ ـ ماده :**
د مودع دائن ، مثبته دين له هغو پيسو چې په وديعت له مستودع څخه دي اخيستلای نشي . (۴)

**۴۶ ـ ماده :**
د خصم (مدعي عليه ) د مديون ، مديون د لومړي دائن مديون نشي کيدای . (۵)

= حضور مالک ضرورت ندارد ، ولی اگر مالک آن دعوی کند ومدعی به قرار فوق بدست اشخاص متذکره باشد حضور همه ضروری است . (۱)

**مادۀ ۴۳ :**
مستودع ( کسی که امانت در دست اوست خصم( مدعی علیه ) خریدار شده نمیتواند . (۲)

**مادۀ ۴۴ :**
مستودع خصم ( مدعی علیه) دائن مودع ( کسی که مالش امانت میدهد ) شده نمیتواند . (۳)

**مادۀ ۴۵ :**
دائن مودع دین مثبته را از پولیکه بودیعت نزد مستودع است گرفته نمیتواند . (۴)

**مادۀ ۴۶:**
مدیون ، مدیون خصم ( مدعی علیه) دائن اول شده نمیتواند . (۵)

(۱) : الْمَادَّةُ ( ۱٦۳۷ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .
(۲) : الْمَادَّةُ ( ۱٦۳۸ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ . وشرح الْمَادَّةُ ( ۱٦۳۳ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (۲۲۷) .
(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱٦۳۹ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .
(۴) : الْمَادَّةُ ( ۱٦۳۹ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .
(۵) : الْمَادَّةُ ( ۱٦٤۰ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .

**۴۷ ـ ماده :**
د مړه دا ئن دمړه له ذمګي دين څخه د مړه ( دورثه ؤ په موجوديت کې ) پر مديون دعوی نشي کولای .(١)

**۴۸ ـ ماده :**
دخصم ( مدعي عليه ) د پيرودونکي له پيرودونکي سره د ثمنو په غوښتنه کې بائع مخاصم نه شي کيدای ، بلکې له لومړي پيرودونکي سره به مخاصمه کوي . (٢)

**۴۹ـ ماده :**
پرته د ارث له شراکته نور شريکان يو د بل په ځای مخاصمه نه شي کولای . (٣).

**تبصره :**
که څوک پر مشترک مال ، پرته له ميراثه د ملکيت دعوه وکړي ، وروسته له ثبوته دهغه دپاره دقضا حکم صادر شي نو دا حکم په خپله د مدعي عليه په برخه منحصر دی ، د نورو شريکانو برخو ته تجاوز نه شي کولای . (۴).

**مادۀ ۴۷ :**
دائن متوفی از دين ذمگی متوفی با موجوديت ورثه برمديون متوفی دعوی کرده نميتواند . (١)

**مادۀ ۴۸:**
مشتری ، مشتری خصم ( مدعی عليه) بائع درمطالبه ثمن شده نميتوا ند ، بلکی با مشتری اول مخاصمه مينمايد . (٢)

**مادۀ ۴۹ :**
غير از شراکت ارث ديگر شرکاء يکی عوض ديگر مخاصمه کرده نميتواند(٣)

**تبصره :**
اگر کسی برمال مشترک غير ميراث دعوی ملکيت کند بعد ازثبوت برايش حکم قضاء صادر گردد حکم مذکور بر حصه خود ( مدعی عليه) منحصر است به حصص ديگر شرکاء تجاوز کرده نميتواند . (۴)

(١): الْمَادَّةُ ( ١٦٤٠ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ الْعَدْلِيَّةِ .
(٢) : الْمَادَّةُ ( ١٦٤١ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ الْعَدْلِيَّةِ .
(٣) : الْمَادَّةُ ( ١٦٤٣ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ الْعَدْلِيَّةِ .
(۴) : الْمَادَّةُ ( ١٦٤٣ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ الْعَدْلِيَّةِ .

**۵۰ ـ ماده :**

که مدعی به ، د عامه ؤ له حقوقو څخه وپیژندلی شي نو یو له شریکانو څخه مدعي کیدای شي ، او دهمغه یو نفر پر دعوی دقضا حکم مرتب کیږي . (۱)

**تبصره :**

که دکلي خلک له سلو تنو څخه زیات وي دمشترکه شیانو په دعووکې لکه ویاله ، مرعی ( څرځای) دمحاکمې دجریان په غرض له هغو څخه د ځینو حضور کفایت کوي . (۲)

**۵۱ ـ ماده :**

د نسب اثبات په مختلفو مواقعوکې بالمقابل پنځه تنه کیږي د مړي وارث وصي،موصی له،دائن اومدیون . (۳)

**۵۲ ـ ماده :**

که صغیر مدعي علیه یا مدعي وي ، نو دده د وصي یا ولي حضور کفایت کوي د صغیر حضورته ضرورت نشته . (۴)

**مادۀ ۵۰ :**

اگر مدعی به ازحقوق عامه شناخته شود یکی از شرکاء مدعی شده میتوا ند وبر دعوی همان یکنفر حکم قضاء مرتب میشود . (۱)

**تبصره:**

اگراهالی قریه از تعداد صد نفر متجاوز باشند در دعاوی اشیآء مشترکه مانند جوی ، مرعی ، ( چراگاه ) حضور بعضی ازآنها بغرض جریان محاکمه کفایت میکند . (۲)

**مادۀ ۵۱ :**

اثبات نسب درمواقع مختلفه بالمقابل پنج نفر میشود وارث ، وصی ، موصی له ، دائن ، مدیون متوفی . (۳)

**مادۀ ۵۲:**

اگر صغیر مدعی علیه ، یا مدعی باشد حضور وصی یا ولی او کفایت میکند بحضور صغیر ضرورتی نیست . (۴)

---

(۱) : الْمَادَّةُ ( ١٦٤٤ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .

(۲) : الْمَادَّةُ ( ١٦٤٥ ) و (١٦٤٦) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .

(۳) : البزازية علي الهندية جــ (۵) صــ (۳۵۶ ــــ ۳۰۹) ، تنقيح الحامدية كِتَابُ الدَّعْوَى جــ (۲) صــ (۱۴). تكملة ردالمحتار كتاب الدعوي جــ (۱) صــ (۳۱۴) .

(۴) : الْمَادَّةُ ( ١٦١٦ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .الفتاوى الهندية , جــ (۳) صــ (٤٢٧) . شرح الْمَادَّةُ ( ١٦١٦ ) دررالحكام جــ (٤) صــ (۱۷۹) والاتاسي جــ (۵) صــ (۹).

**۵۳ ـ ماده :**

د ميرمنې ښځې د نكاح په دعوى كې د قاضي په مخ كې دهغې دميړه حضور ضرور دى . (۱) .

**۵۴ ـ ماده :**

د هغې ښځې دنكاح په دعوى كې چې كبيره وي او په هغې كې د پلار تزويج استناد شوى وي ، په دعوى كې دهغې د پلار حضور حتمي نه دى . (۲)

**۵۵ ـ ماده :**

كه دوه تنه ديوې ښځې په باره كې د نكاح دعوى ولري اوښځې له دې دواړو څخه په يوه اقرار او د بل له نكاح څخه انكار وكړ ، اول پورتني دوه تنه مدعي او مدعي عليه پيژندل كيږي . (۳)

**۵۶ ـ ماده :**

كه دوه تنه ديوشي په خصوص كې له يو نفر څخه د پيرودني دعوى وكړي ، او دمال خاوند په يوه اقرار او له بل څخه انكار وكړي ، اول دوه تنه مدعي او مدعي عليه بلل كيږي . (۴)

**مادۀ ۵۳ :**

در دعاوی نكاح زن شوهردار حضور شوهرش عندالقاضی ضرور است .(۱)

**مادۀ ۵۴ :**

در دعوی زنی كه كبيره باشد ودرآن بتزويج پدرش استناد شده باشدحضور پدرش دردعوی حتمی نيست . (۲)

**مادۀ ۵۵ :**

اگر دونفر راجع به يک زن دعوی نكاح داشته باشند وزن بيكی ازآن دونفراقرار ، وازنكاح ديگری انكار آورد اول دونفر فوق مدعـی ومدعـی عليه شـناخـته ميشوند . (۳)

**مادۀ ۵۶ :**

اگر دو نفر راجع به يک ( شی ) از يكنفر دعوی خريداری نمايند ، ومالک مال به يكی اقرار ، وازديگری انكار كند اول دونفر فوق مدعی ومدعی عليه شناخته ميشوند . (۴)

---

(۱): الهندية جــ (۳) صــ (٤۲۷) تكملة جــ (۲) صــ (۱۱٦).

(۲) : البحر جــ (۷) صــ (۱۹۵) . رد المختار جــ (٤) صــ (٤۸٦) تكملة جــ (۱) صــ (۳۱٤) .

(۳) : الهندية جــ (٤) صــ (۷۸) .

(۴) : الهندية ,كتاب الدعوي جــ (٤) صــ (۲۹) .

**۵۷ ـ ماده :**

که څه هم شرعا دمدعي او مدعي علیه محاکمه په علني ډول اجراء کیږي مګر کوم حکم چې اراده شوی وي باید پخوا له اصدار څخه افشا نشي . (۱)

**۵۸ ـ ماده :**

څرنګه چې ددواړوخواوو ( مدعي اومدعي علیه ) حضور دقضا د صحت شرط دی نوکه یوه شخص پر بل باندي خپله دعوی وړاندي کړه اومدعي علیه اقرار وکړي ، مګر دحکم په وخت کې ځان ګوښه کړي یا مدعی علیه وروسته د شاهدانو له شاهدي اوپخوا له تزکیې خپل ځان غائب کړي قاضي په پورتني دواړو صورتو کې کولای شي چې مدعي علیه حاضر وبولي اجرا آت وکړي . (۲)

**۵۹ ـ ماده :**

که د مړه د متروکې په خصوص کې له یوه وارث سره دعوی دائره شي اودا وارث حاضر شي ، ددعوی له اقامې اوشرعي ثبوت څخه وروسته د حکم له اصدارڅخه پخوا غائب شي او بل وارث چې د دعوی په جریان کې حاضر نه وي حاضر شي قاضي کولای شي په داسي حال کې چې دئ دفاع ونکړي پرده باندي خپل حکم صادر کړي . (۳)

**مادهٔ ۵۷ :**

اگر چه شرعًا محاکمه مدعی ومدعی علیه بطور علنی اجرآء میشود ولی حکمی که اراده شده باشد باید قبل از اصدار افشا نشود . (۱)

**مادهٔ ۵۸ :**

چون حضور طرفین ( مدعی ومدعی علیه ) شرط صحت قضاء است اگر شخصی برعلیه دیگری دعوی خود را تقدیم کند ومدعی علیه اقرار کند اما دروقت حکم خود را کناره نماید ویا مدعی علیه بعد از شهادت شهود قبل از تزکیه خود را غائب گرداند قاضی در هردوصورت فوق میتواند که مدعی علیه را حاضر دانسته اجراآت نماید . (۲)

**مادهٔ ۵۹ :**

اگر راجع بمتروکه متوفی با یکی از ورثه دعوی دائرگردد واین وارث حاضر شده بعد از اقامه دعوی وثبوت شرعی قبل از اصدار حکم غائب گردد ووارث دیگرکه درجریان دعوی حضورنداشته حاضر شود قاضی میتوا نددرحالیکه وی دفاع نکند برعلیه او حکم خود را صادر کند . (۳)

---

(۱) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۱۵ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَام الْعَدْلِيَّةِ .

(۲) : الْمَادَّةُ (۱۸۳۰) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ. الاتاسي جـ (٦) صـ (۱۳۵) .

(۳) : الْمَادَّةُ (۱۸۳۲) مَجَلَّةُ الْأَحْكَام . والاتاسي جـ (٦) صـ (۱۳۸) .

**۶۰ـ ماده :**

که مدعي علیه ددفاع په حال کې ووایې چې مدعي ، مدعی به وروسته له دعوی د پیرودني ، داجارې، هبې یا ودیعت په صورت له هغه څخه غوښتي ، یا مدعي بها ښځه یې طلبګاري کړې لکه اقرار غوندي دمدعي دالزام دحکم موجب دی . (۱)

**۶۱ـ ماده :**

همدا ډول دمدعی بها د تقسیم پر غوښتنه اقدام اقراردی پردې چې مدعی بها ددوی په منځ کې مشترکه ده . (۲)

***

**مادۀ ۶۰ :**

اگر مدعی علیه درحال دفاع بگوید که مدعی به را بعد از دعوی بصورت خریداری یا اجاره یا هبه یا ودیعت ازوی درخواست نموده ، ویا زن مدعی بها را طلبگاری کرده مانند اقرار موجب حکم الزام مدعی است . (۱)

**مادۀ ۶۱ :**

همچنین اقدام بر طلب تقسیم مدعی بها اقرار است بر اینکه مدعی بها بین شان مشترک میباشد . (۲)

***

(۱) : الْمَادَّةُ ( ۱۵۸۳ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ الْعَدْلِيَّةِ . الفتاوي الكاملية صــ (۱۱۵) .
(۲): الْمَادَّةُ ( ١٦٥٦ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ الْعَدْلِيَّةِ . الفتاوي الكاملية صــ (۱۵۱) .

# محکوم به (۱)

**۶۲ ـ ماده :**
مدعي به په څلورو ډولو ويشل کيږي : (۲)
**لومړی :** دخدای محضه حقوق (عامه حقوق ) چې دهغو فعل يا ترک په يوه يا څوتنوپوري اختصاص ونه لري ضرر اوخساره يې عامه يا په ګډوروعمومي چارو پوري مربوط وپيژندل شي .
**دويم :** خالص حق العبد لکه قضاوت په اموالو او دهغو په امثالو کې چې په يوه يا څو تنو پوري ارتباط لري .
**درېيم :** د حق العبد اوحق الله مشترکه حقوق چې په هغو کې حق الله غلبه ولري ، لکه قذف ، د سرقې حد .
**څلورم :** د حق الله اوحق العبد مشترکه حقوق چې په هغوکې د بنده حق غالب وي لکه قصاص او حق العبدي تعزيرات . (۳)

**مادۂ ۶۲ :**
محکوم به: به چهار قسم تقسیم میشود : (۲)
**اول :** حقوق مختصه خدا (حقوق عامه) که فعل وترک آن بیک یا چند نفر اختصاصی نداشته باشد ضرر وخساره آن عام ويا عائد بامور عمومی شناخته میشود .
**دویم :** حق العبد خالص مانند قضاوت در اموال وامثال آن که بایک ویا چند نفر ارتباط دارد .
**سویم :** حقوق مشترکه حق العبد وحق الله که درآن حق الله غلبه داشته باشد مانند حد قذف ، وحد سرقه .
**چهارم :** حقوق مشترکه حق الله وحق العبد که درآن حق بنده غالب باشد ما نند قصاص ، تعزیرات حق العبدی . (۳)

---

(**۱**) : الْمَادَّةُ ( ۱۷۸۷ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ الْعَدْلِيَّةِ .
(**۲**) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۷۸۷ ) درر الحکام جـ (٤) صـ (٥٧٦) . ط عربية
(**۳**): شرح الْمَادَّةُ ( ۱۷۸۷ ) درر الحکام جـ (٤) صـ (٥٧٦) . وشرح الْمَادَّةُ ( ۱۷۸٤ ) الاتاسي جـ (٦) صـ (۱۰) .

**۶۳ـ ماده :**

د دعوو دصحت شرط هغه دی چې مدعی به معلوم او معین وي . (۱)

**تبصره :**

باید دمدعی به جنس او اندازه دقاضي په حضورکې بیان کړل شي . (۲)

**۶۴ـ ماده :**

مدعی به په اشاره یا وصف ، تعریف او قیمت معلومیږي .

**تبصره :**

که مدعی به دقضا په مجلس کې حاضر وي دمدعي اوشاهدانوپه اشاره کفایت کیدای شي ، او په غیاب کې د مدعی به قیمت ، تعریف ، او توصیف حتمي دی . (۳)

**۶۵ـ ماده :**

قاضي دقیمت په تعیین کې له باخبرو ځایو او رسمي دوائروڅخه معلومات اخلي . (۴)

**۶۶ـ ماده :**

د نامعلومه شي دعوی د اوریدو وړ نه ده . (۵).

**مادۀ ۶۳:**

شرط صحت دعوی آنست که مدعی به معلوم ومعین باشد . (۱)

**تبصره:**

باید جنس ومقدار مدعی به بحضور قاضی بیان کرده شود . (۲)

**مادۀ ۶۴:**

مدعی به، باشاره ، یا وصف ، وتعریف ، وقیمت معلوم میشود .

**تبصره :**

اگر مدعی به حاضر مجلس قضاء باشد باشاره مدعی ، وشهود کفایت شده میتواند، و در غیاب : قیمت ، وتعریف ، وتوصیف مدعی به حتمی است . (۳)

**مادۀ ۶۵:**

قاضی درتعیین قیمت ازمنابع خبیر و د وآئر رسمی معلومات میگیرد (۴)

**مادۀ ۶۶:**

دعوی چیزی مجهول قابل استماع نیست . (۵)

(۱) : الْمَادَّةُ ( ۱٦۱۹ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ . ودررالحكام جـ (٤) صـ (٥٧٦) .
(۲) : الْمَادَّةُ ( ۱٦۲۰ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ . الهندية جـ (٤) صـ (٣).
(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱٦۲۰ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .
(۴) : الْمَادَّةُ (٤١٤ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ.
(۵) : الْمَادَّةُ (١٦١٩) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ . والاتاسي جـ (٦) صـ (٩٢) .

**تبصره :**

دغصب ، رهن ، وصیت ، ابرآء اواقرار دعوی ګاني له پورتنۍ مادې څخه مستثنی دي (۱)

**۶۷ـ ماده :**

قاضي په هغو شیانوکې چې احضار يې محکمې ته متعذر ( مشکل ) ولیدل شي کولای شي چې خپل امـین اومعتمد سړئ ددعوی د صحت په غرض هغه ځای ته چې مدعی به هلته ده واستوي اومدعي اشاره به هغه وګوري او خپل اطمنان په دې سره چې مدعی به معلوم دی حاصل کړي . (۲)

**۶۸ـ ماده :**

په مختلف الجنس او مختلف النوع او مختلف الصنف شیانو کې لکه د یو سمسار، بنجاره ( پرچون ) ددکان مالونه دهغه د قیمت په ذکرکولوجملتا (اجمالا) کفایت کېدای شي ، که څه هم د هر یوه قیمت ځانګړی ونه ویل شي . (۳)

**۶۹ـ ماده :**

د غلا په دعوی کې د غلا شویو مالونو دقیمت ذکر شرط دی . (۴) .

**تبصره:**

دعوی رهن ، غصب ، وصیت ، ابرآء ، واقرار ازماده فوق مستثنی است . (۱)

**مادۀ ۶۷:**

قاضی در چیزهای که احضار آن در محکمه متعذر ( دشـوار) دیـده شود مـیتواند شخصـی امین ومـعتمد خود را بـغرض صحت دعوی در جائیکه مدعـی به است فرستاده ، و اشـاره مدعــی را بـآن ملاحظه نموده اطمنان خود را در اینکه مدعی به معلوم است حاصل کند . ( ۲)

**مادۀ ۶۸ :**

در چیزهای مختلف الجنس ، ومختلف النوع ، ومختلف الصنف ، مانند اموال دکان یک سـمسار ، بـنجار ( پرچون) بذکر قیمت آن جملتًا ( اجمالا ) کفایت شده میتواند اگرچه قیمت هرکدام آن علیحده گفته نشود . (۳)

**مادۀ ۶۹ :**

در دعوی سرقه ذکر قیمت اموال مسروقه شرط است . (۴)

(۱) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۶۱۹ ) درر الحکام جــ (۴) صــ (۱۸٤) .

(۲) : شرح المجلة رستم باز جــ (۲) صــ (۷۱٤) .

(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱۶۲۲ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ.

(۴): درالمختار علی هامش جــ (۴) صــ (۴۶۸) . ردالمحتار جــ (۷) صــ (٤۱۶) .

**۷۰ ـ ماده :**
د ودیعت په دعوی کې که خاوند یې دهغه د تسلیم موضوع ته تخصیص ورکړی وي باید محل یې ذکر کړي .(۱)

**۷۱ ـ ماده :**
د مستهلکه شیانو په دعوی کې دهغو دقیمت ، جنس ، او ډول بیان د دعوی د صحت شرط دی . (۲)

**۷۲ ـ ماده :**
د حیواناتو په دعوی کې د ذکورت ، انوثت ، او قیمت بیان د دعوی دصحت شرط دی . (۳)

**۷۳ ـ ماده :**
بایـد مدعی به محـتمل الـثبوت وي ، دهغو شیانو دعوی چې عقلا یا عادتا مستحیل وي نه اورېدله کیږي . (۴)

**۷۴ ـ ماده :**
که مدعی به پـور وي ، دهغـه د جنس ، ډول ، صفت ، اندازه ، او سـبب بـیان ضروري دی . (۵)

**مادۀ ۷۰:**
در دعوی ودیعت اگر صاحب آن موضع تسلیم آنرا تخصیص داده باشد، باید محل آنرا ذکر نماید . (۱)

**مادۀ ۷۱:**
در دعوی اشیآء مستهلکه بیان جنس ونوع وقیمت آن شرط صحت دعوی است . (۲)

**مادۀ ۷۲:**
در دعوی حـیوانات بـیان ذکورت ، انـوثت ، قیمت ، شـرط صحت دعوی است . (۳)

**مادۀ ۷۳:**
باید مدعی به محتمل الثبوت باشد ، دعوی چیزی که عقلا یا عادتًا مستحیل باشد شنیده نمیشود . (۴)

**مادۀ ۷۴:**
اگر مدعی به : دین باشد بیان جنس ، نوع ، صفت ، مقدار ، وسبب آن ضروری است . (۵)

(۱) : درالمختار علي هامش جـ (۴) صـ (۴۶۸) . ردالمحتار جـ (۷) صـ (٤١٦) .
(۲) : الهندية جـ (۴) صـ (۶) . شرح المادة (۱۶۲۰) دررالحکام جـ (۴) صـ (۱۸۸) .
(۳) : الهندية جـ (۴) صـ (۵) .
(۴) : الْمَادَّةُ ( ١٦٢٩ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ . الكاملية صـ (۱۱۷) .
(۵) : الْمَادَّةُ ( ١٦٢٦ ) و (١٦٢٧ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .

**۷۵ ـ ماده** :
پر مړي باندي د پور په دعوی کې باید مدعي په خپله دعوی کې ذکر کړي چې مړئ ددې پور له اداء څخه پخوا مړشوی دی او له دې پور څخه دده ترمرګه پوري ماته هيڅ شی نه دی رسېدلی . (۱)

**۷۶ ـ ماده** : دمړه دپورپه دعوی کې دي دده متروکه ذکرشي او شاهدان دي هم (**۷۴ـ۷۵**) ماده په نظر کې ونيسي . (۲)

**تبصره** : د شهودو له موجوديت سره سره قاضی کولای شی احتياطامدعی ته قسم راجع کړي. (۳)

**۷۷ـ ماده** : د پورونو دعوی داسبابو د اختلاف له مخي جزوي توپير پيدا کوي دمثال په ډول دسلم په دعوی کې دهغه درسيدلودمحل ذکرشرط دی او دمبيعې په ثمنو کې دهغه ذکر شرط نه دی ، په پورکې د تاجيل اود هغه درسولودمحل ذکر ته ضرورت نشته . (۴)

**۷۸ ـ ماده** : د پور په دعوی کې دي واضح شي چې مدعي خپل شخصي ملکيت مدعي عليه ته پور ورکړی دی او مدعي عليه هغه په مصرف رسولی دی . (۵)

**مادهٔ ۷۵**:
در دعوی دین بر متوفی باید مدعی در دعوی خود ذکر نماید که متوفی قبل از ادای دین مذکور فوت نموده ، واز دین مذکور تا وقت مردنش چیزی برایم نرسیده است . (۱)

**مادهٔ ۷۶**: دردعوی دین متوفی متروکه اش ذکر شود وشهود نیز طبق ماد (**۷۴ـ ۷۵**) را درنظر داشته باشند . (۲)

**تبصره** : با وجود شهود قاضی میتواند احتیاطا بمدعی قسم راجع کند . (۳)

**مادهٔ ۷۷**:
دعاوی دیون بنأ براختلاف اسباب تفاوت جزوی را بوجودمی آورد مثلا در دعوی سلم ذکر محل رسانیدن آن شرط است ودرثمن مبیع ذکرآن شرط نیست ودرقرض به بیان تاجیل ومحل رسانیدن آن ضرورتی نمیباشد . (۴)

**مادهٔ ۷۸**:
ایضاح شود که مدعی ملکیت شخصی خود رابه مدعی علیه قرض داده ومدعی علیه آنرابمصرف خودرسانیده است (۵)

(**۱**) : شرح الْمَادَّةُ ( ١٦٢٦ ) دررالحکام جـ (٤) صـ (۲۰۳) . وتکملة رد المحتار جـ (۱) صـ (۳۳۱) .
(**۲**) : جواهرالروايات صـ (۶۰) .
(**۳**) : الْمَادَّةُ (۱۷۴۶) مجلة الاحکام . وشرح المادة (۱۷۴۶) جـ (۴) صـ (۴۹۹) دررالحکام .
(**۴**) : بحرالرائق جـ (۷) صـ (۱۹۵) ط رشیدیه کوئته
(**۵**) : الهندية جـ (۳) صـ (۳۲٦) و جـ (۴) صـ (۳) . جامع الفصولين جـ (۱) صـ (۷۴) . البحرالرائق جـ (۷) صـ (۲۰۱) .تکملة رد جـ (۱) صـ (۳۳۱) . الفتاوي الکاملية (۱۲۳)

**٧٩ ـ ماده :**
دتمليک په دعوو کې شرط دی چې دا توضيح ورکړه شي چې تمليک بې عوض دی اوکه په عوض سره دی .(١)

**٨٠ ـ ماده :**
د هبې په دعوو کې شرط دی چې د موهوب له قبض ذکرشي .(٢)

**٨١ ـ ماده :**
دعقودو په دعووکې لکه بيع ، اجاره ، رهن ، اونور د ملکيت په اسبابوکې د رضا اورغبت ذکرضروري دی . (٣)

**٨٢ ـ ماده :**
دپلورنې، پيرودنې، اجارې اونورو عقودو په دعووکې بايد ملکيت مدعي عليه ته انتساب شي . (٤)

**٨٣ ـ ماده :**
د مدعي او مدعي عليه د عقل اوبلوغ اظهار د عقودو د اثبات په غرض ددعوی دصحت شرط دی . (٥)

**مادۀ ٧٩:**
دردعاوى تمليک شرط است كه توضيح داده شود تمليک بلاعوض است يا باعوض . (١)

**مادۀ ٨٠:**
دردعاوى هبه شرط است كه قبض موهوب له ذكر شود . (٢)

**مادۀ ٨١:**
در دعاى عقود مانند بيع ، اجاره ، رهن ، وغيره اسباب ملكيت وذكر رضاء ورغبت ضرورى است . (٣)

**مادۀ ٨٢:**
دردعاوى بيع ، شراء ، اجاره ، وسائر عقود بايد ملكيت به مدعى عليه انتساب شود . (۴)

**مادۀ ٨٣:**
اظهار عقل وبلوغ مدعى ومدعى عليه بغرض اثبات عقود شرط صحت دعوى است . (۵)

(١) : شرح الْمَادَّةُ ( ١٦٢٠) دررالحكام جـ (٤) صـ (١٨٧) . تكملة رد جـ (١) صـ (٣٩١) .
(٢) : بحرالرائق جـ (٧) صـ (٣٥) .
(٣) : جواهرالروايات صـ (٣٩ ـــــ ٦٠) .شرح المادة (١٦٢٠) دررالحكام جـ (۴) صـ (١٨٧) . بحرالرائق جـ (٧) صـ (٢٠٢) . الفتاوي الكاملية صـ (١١۶) .
(۴) : جواهرالروايات صـ (٣٩) .
(۵) : الْمَادَّةُ (١٦١٦) مجلة الاحكام . دررالحكام جـ (٤) صـ (١٥٧) .

**۸۴ ـ ماده :**

دجامې په دعووكې لكه كميس او نور، برسيره د نوع ، جنس ،صفت او قيمت په ذكر بايد دا توضيح شي چې دا جامه د نارينه ده او كه دښځو،كوچنۍ ده يا لويه (۱)

**۸۵ ـ ماده :**

د تقسيم په دعوى كې بايد مدعي د تراضي برخه او قضايي برخه يوه له بلي جلاكړي او توضيح وركړي چې تقسيم په قضايي ډول شوى دى او كه په رضايي . (۲)

**۸۶ ـ ماده :**

دهويلۍ د آبْرَو اونوروپه دعووكې بايد مدعي وښاكي چې آبْرَو دباران دى اوكه د مستعملواوبو او نورو آبْرَو دى . (۳)

**۸۷ ـ ماده :**

دغير منقولو مالونو په دعوى كې بايد څلورګوني حدود ذكرشي او ددرې حدونو په ذكر هم كفايت كيداى شي . (۴)

**۸۸ ـ ماده :**

داقرار په دعوى كې دمقر د رضا اورغبت ذكر ددعوى د صحت شرط دى . (۵)

**مادهٔ ۸۴:**

در دعوى جامه مانند پيراهن و غيره علاوه برذكر نوع ، صفت ، جنس، قيمت ، آن بايد توضيح شود كه جامه مردانه است يا زنانه خورد است ياكلان . (۱)

**مادهٔ ۸۵:**

در دعوى تقسيم بايد مدعى قسمت تراضى وقسمت قضائى را يكى از ديگرى جدا كند وتوضيح بدهد كه تقسيم بطورقضائى شده يا رضائى (۲)

**مادهٔ ۸۶:**

در دعوى آبرو ، حويلى وغيره بايد مدعى تعيين نمايد كه آبرو باران است يا آبرو آب مستعمله وغيره . (۳)

**مادهٔ ۸۷:**

در دعوى اموال غير منقوله بايد حدود اربعه ذكر شود وبذكر سه حد نيز كفايت شده ميتواند . (۴)

**مادهٔ ۸۸:**

در دعوى اقرار ذكر رضاء ورغبت مقر شرط صحت دعوى است . (۵)

---

(۱) : الفتاوي الهندية جـ (٤) صـ (۷) .

(۲) :. الفتاوي الكاملية صـ (۱۱۷) .

(۳) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱٦۲۰ ) دررالحكام جـ (۴) صـ (۱۹۰) . تكمله رد جـ (۱) صـ (۳۳۳) .

(۴) : الْمَادَّةُ ( ۱٦۲۳ ) مجلة الاحكام . الهندية جـ (٤) ص (۸) .

(۵): الْمَادَّةُ ( ۱۵۷۵ ) مجلة الاحكام .

**۸۹ ـ ماده :**

د ځمکي او نورو په دعوی کې دملکيت د قضا د صحت دپاره بايدمدعی به وغوښتلی شي او مدعي دي بيان کړي چې مدعی به غير حق د مدعي عليه په لاس کې ده . (۱)

**۹۰ ـ ماده :**

دغير منقول شيانو په دعوی کې بايد مدعي بيان کړي چې مدعی به دمدعي عليه په لاس او تصرف کې دی او پرهغه باندي د شاهدانو ( دذواليدي شاهدانو ) تيرول ضروردي ، دا تفصيل په ملکيت باندي دقضا د صحت د پاره دی نه ددعوی د صحت دپاره . (۲)

**۹۱ ـ ماده :**

حادثه ( نوی) لاس او تصرف اعتبار نلري ، ځکه کله کله کيږي چې په يوه مدعی به کې يوشخص له اوږدې زماني لاس او تصرف ولري مگر مقابل جانب په زور يا په چل سره په مدعی به کې تصرف کوي او خپل ځان مدعي عليه گرځوي نو بايد چې قاضي په لومړۍ مرحله کې مدعي له مدعي عليه څخه و پيژني اوخارجي له حقيقي ذواليد څخه جلا کړي . (۳)

**مادۀ ۸۹:**

در دعوی زمین وغیره برای صحت قضاء ملکیت باید مدعی به مطالبه شود ومدعی بیان کند که مدعی به در دست مدعی علیه بغیر حق میباشد (۱)

**مادۀ ۹۰:**

در دعوی اشیآی غیر منقول بایدمدعی بیان کند که مدعی به در دست وتصرف مدعی علیه است واقامه شهود بــرآن ( شهود ذوالــيدي) ضـروری است این تفصیل بـرای صحت قضاء برملکیت است ، نه برای صحت دعوی . (۲)

**مادۀ ۹۱:**

دست وتصرف حادثه ( تازه) اعتبار نـدارد زیرا گاهــی مــیشود که در یک مدعی به شخصی از زمان مدید دست وتصرف داشته باشد اما جانب مقابل بــطور غلبه ویا خــدعه مــدعی به را متصرف میشود وخود را مدعی علیه قرار میدهد پس باید قاضی در مرحله اول مدعی را از مدعی علیه بشناسد و خـــارج را از ذوالیــد حقیقــی تفــریق وتفکیک کند (۳)

---

(۱) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۶۲۳ ) دررالحكام جــ (٤) صــ (۱۹٦) . تكملة ردالمحتار (۱) صــ (۳۱۹) .

(۲) : وتكملة ردالمحتار جــ (۱) صــ (۳۲۹) . الفتاوي الكاملية صــ (۱۱٤) .

(۳) :شرح الْمَادَّةُ (۱٦۷۹) دررالحكام جــ (٤) صــ (۳۳۲) الفتاوي الكاملية صــ (۱۱٤) . شرح الاتاسي جــ (٥) صــ (۱۹۷) .

**۹۲ ـ ماده :**

که د(۹۱) مادې په موضوع کې د مدعي او مدعي عليه په منځ کې يو اختلاف موجود شي قاضي کولای شي چې هغه لکه نور حقوقي موضوعات حل او فصل کړي . (۱)

**۹۳ ـ ماده :**

که مدعي او مدعي عليه په اصل ذو اليدي کې جګړه ولري او هريو ځان ذو اليد بولي په داسي حال کې چې دواړي خواوي شاهدان تير کړي نو د دواړو خواؤ دپاره په ذواليدي کې مناصفه حکم صادريږي ، او که هيڅ يو شاهدان ونه لري نو شرعا ددوی په حلف اونکول حکم صادريږي . (۲)

**۹۴ ـ ماده :**

دمنقوله شيانو په دعووکې که مدعي وغواړي چې مدعی به د مدعي عليه له لاس او تصرفه په مقنعه دلايلو خارج شي ، نو قاضي دلزوم له مخي کولای شي دغه شکايت قبول کړي اومدعی به دمدعي عليه له لاسه وباسي ترڅو چې دعوی پای ته رسيږي يوه امين او معتمد شخص ته دې وسپاري . (۳)

**مادهٔ ۹۲:**

اگر در موضوع ماده (۹۱ ) بین مدعی و مدعی علیه اختلافی موجود گردد قاضی میتواند آنرا مانند دیگر موضوعات حقوقی حل وفصل نماید . (۱)

**مادهٔ ۹۳:**

اگر مدعی ومدعی علیه در اصل ذوالیدی منازعه داشته وهرکدام خود را ذوالید بدانند در حالیکه طرفین اقامه شهود نمایند برای هردو طرف در ذوالیدی مناصفه حکم صادر میشود واگر هیچ یک شهود نداشته باشد شرعًا بحلف ونکول شان حکم صادر میگردد . (۲)

**مادهٔ ۹۴:**

در دعاوی اشیآء منقوله اگر مدعی بخواهد که مدعی به رااز دست وتصرف مدعی علیه با دلائل مقنعه خارج شود قاضی عنداللزوم میتواند شکایت مذکور را قبول کند مدعی به رااز دست مدعی علیه کشیده تا ختم دعوی بدست شخص امین ومعتمد بسپارد . (۳)

(۱) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۶۷۹ ) دررالحکام جـ (٤)صـ (۳۳۲) .

(۲) : الْمَادَّةُ ( ۱۷۵۵ ) مجلة الاحکام . الهندية ج (۴) ص (۹۳) .

(۳) : الفتاوی الكاملية صـ (۱۱۵) .شرح المادة (۱۸۱٦) الاتاسي جـ (٦) صـ (۹٤) .الاتاسي جـ (٥) صـ (۳۱) .

**تبصره :**
دميوه لرونكو ونو او دنكاح په دعوی كې له پورتـــني قرار سره سم اجرا آت كيږي . (۱)

**۹۵ ـ ماده :**
دهغې ميړوښې ښځې دنكاح په دعوی كې چې د ميړه په كوركي وي ترڅوچې مقابل جانب يي شاهدان تير نكړي دميړه له لاسه نه ايستله كيږي .(۲)

**۹۶ ـ ماده :**
كه دغير منقوله شيانوپه دعووكې د ذو اليدي شاهدان موجودنه وي نو د انكار په صورت كې قاضي كولای شي چې د مدعـــي عليه د لاس او تـــصرف په موضوع كې د مدعي له غوښتني څخه وروســـته مدعـــي عليه ته قسم وركړي او په خـــپله ذوالـــيدي باندي دمدعي عليه د تصديق په صورت كې سوگند په اصله مدعی به كې مدعي عليه ته متوجه كيږي . (۳)

**تبصره:**
در دعوی اشـجار مـثمر ودعوی نكاح نيز طبق فوق اجرا آت ميشود . (۱)

**مادۀ ۹۵:**
در دعوی نكاح زن شـوهـر دار كه درخانه شـوهرش باشد تا جانب مقابل اقامه شـــهود نكـند از دســت شوهرش كشيده نميشود . (۲)

**مادۀ ۹۶:**
در دعاوی اشيآء غير منقوله اگر شهود ذواليدی موجود نباشددر صورت انكار قاضی ميتوانددرموضوع دست وتصرف مدعـــی عليه بعــد از مـطالبه مدعی ، مدعی عليه را حلف بدهد ، ودرصورت تصديق مدعی عليه بر ذوالــيدی خود حــلف در اصل مدعی به بمدعی عليه متوجه ميشود . (۳)

(۱) : الفتاوى الكاملية صـــ (۱۱۵) . شرح المادة (۱۸۱٦) الاتاسى جــ (٦) صـــ (۹۳) .
(۲) : الهندية جــ (۳) صـــ (۳۷۷) . شرح المادة (۱۸۱٦) الاتاسى جــ (٦) صـــ (۹۳) .
(۳) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۷٥٤ ) دررالحكام جــ (٤) صـــ (٥۱۳) .

**۹۷ ـ ماده :**

دتعرض ددفع په دعووکې مدعي دخپل لاس او تصـرف شـاهدان راولـي د مدعـي عليه دتعرض دفع غواړي ، قاضي دي وروسته له هغه چې مدعي خپله ذو اليدي ثابته کړي ، مدعي عليه ته دي ووايي چې که دخپل ملکيت شرعي دليل او برهان لري حاضر دي يي کړي او که نه د مدعی به په موضوع کې دي په مدعي متعرض نه شي . (۱) .

**۹۸ ـ ماده :**

په هغوعقودوکې چې زيات شرائط لري لکه سلم او کفاله او دهغو په شان ياټول شرائط ئي ذکرکيږي او که ځيني ئي ذکر شـــي نو مدعي دې د هغو په پای کې ووايي چې دا عقد صحيح او شرعي پای ته رسېدلی دی ټول شرعي شرائط لري او يا هيڅ شرعي موانع په هغو کې نشته کفايت کوي . (۲)

**تبصره** : د نکاح دعقد په دعووکې که مدعي ځينې شرايط بيان کړي او په پای کې يي ووايي چې دنکاح عقد د ناکح او منکوحې په منځ کې صحيح اوشرعي شوی دی ، ټول شرعي شرايط لري او په دې عقد کې هيڅ شرعي موانع وجود نلري کفايت کوي . (۳)

**مادۀ ۹۷:**

در دعاوی دفع تعرض ، مدعی شهود دست وتصرف خودرا آورده دفع تعرض مدعی علیه را مطالبه مینماید، قاضی بعدازآنکه مدعی ذوالیدی خودرا ثابت کـند بمدعی علیه بگویـد که اگر حجت وبــرهان شرعی ملکیت خود را داشته باشدحاضرکندوالادرموضوع مدعی به متعرض مدعی نشود . (۱)

**مادۀ ۹۸:**

در عقودی که شرائط زیاد دارد مانند سلم ، کفاله وامثال آن یا تمامًا شرائط آن ذکر میشود ویا اگر بعضی ذکر شود مدعی درآخر آن بگوید که عقد مذکور صحیح وشرعـــی انجام یافته تمامًا شرائط شرعیه را دارا بوده وهیـــچ مانــع شرعــی درآن وجودی نـدارد کــفایت میکــند . (۲)

**تبصره** :در دعاوی عقد نکاح اگر مدعی بعضی شرائط را بیان کند ودرآخرآن بگوید که عقد نکاح صحیح وشرعی در بین ناکح ومنکوحه منعقد شده تمامًا شرائط شرعیه را دارابوده وهیچ مانع شرعی در عقد مذکــور وجود ندارد کفایت میکند . (۳)

(۱) : الفتاوي الکامليه صـــ (۱۱۳) .

(۲) : الفتاوي جواهرالروايات مطلب في العقد الذي کثرت شروطه صـــ (۳۵) .

(۳) : جواهرالرويات صـــ (۲۹ ـــــــ ۳۶) .

**۹۹ ـ ماده :**

د قتل په دعوی کې باید مدعي ووايي چې قاتل مکلف دی او تصریح دې کړي چې په قتل کې شبه نشته او مقتول په خپله په خپل قتل امر نه دی ورکړی ، او عمد قتل دی ، قاتل د مقتول ورثې نه دی عفوه کړی او ددې په شان . (۱)

**۱۰۰ ـ ماده :**

نکاح دوه حکمه لري ، د انعقاد حکم او د اظهار حکم دمنازعې په وخت کې ، نو ځکه هغه شرایط چې د انعقاد په وخت کې لکه د شاهد صفات اونور موجوده شرایط په نظر کې نیول کیږي ، د جګړې په وخت کې د قاضي په حضور کې لکه د نورو حقوقي جګړو غوندي په نظر کې نیول کیږي . (۲)

**۱۰۱ ـ ماده :**

که مدعي دمدعی به تعریف او توصیف وکړي مګر څه وخت چې مدعی به دقضا مجلس ته حاضر شي د مدعی به ځینې اوصاف دمدعي له بیان سره مخالفت ولري ، په دې صورت چې مدعي خپله لومړۍ دعوی پرېږدي او په هغه چې حاضر دی ادعا وکړي =

**مادهٔ ۹۹:**

در دعوی قتل باید مدعی بگوید که قاتل مکلف است و تصریح کند ، که شبهه در قتل نیست و مقتول خودش به قتل خود امر نداده ، و قتل عمد میباشد و قاتل را ورثه عفوه نکرده است و مانند آن . (۱)

**مادهٔ ۱۰۰:**

نکاح دارای دو حکم است : حکم انعقاد ، وحکم اظهار وقت منازعه ، لذا شرائطی که در وقت انعقاد از قبیل صفات شاهد و دیگر شرائط موجوده در نظر گرفته میشود هنگام منازعه بحضور قاضی مانند دیگر منازعات حقوقی در نظر گرفته میشود . (۲)

**مادهٔ ۱۰۱ :**

اگر مدعی تعریف و توصیف مدعی به را نماید ولی وقتیکه مدعی به حاضر مجلس قضاء گردد بعضی اوصاف مدعی به با بیان مدعی مخالفت داشته باشد ، در صورتیکه مدعی دعوی اول خود را ترک گوید وبا آنچه حاضر است ادعا نماید ، نظر باینکه =

(۱) : جواهرالرویات صـ (۶۳) .درالمختار علي هامش ردالمختار جـ (۵) صـ (۳۷۸ ــ ۳۸۸) . الهندية .جـ (٦) صـ (۱۹۲)

(۲) : ردالمحتار جـ (۲) صـ (۲۹٦) الفتاوي جواهرالروايات صـ (۳٦) جوهرالنيرة جـ (۲) صـ (۳) بحرالرائق جـ (۳) صـ (۸۹) .

= نظر ودې ته چې يوه نوي دعوى ده بايد واوريدله شي اوکه هغه مخکنۍ پرې نږ دي د اوريدو وړ نه ده . (۱)

**۱۰۲ ـ ماده :**

دځلوروحدودوپه ذکرکې بايدحدودود مالکانودپلاراونيکه نومونه تعريف شي (۲)

**تبصره :**

مشهور کسان له پورتنۍ مادې څخه مستثنى دي . (۳)

**۱۰۳ ـ ماده :**

که مدعي عليه يا دحد مالک ووايي چې فلانى حد دمدعي له ويلو سره سم نه دى ، نظر ودې ته چې دا ادعا د نفى متضمنه ده قبليدلاى نشي . (۴)

**۱۰۴ ـ ماده :**

که شاهد اقرار وکړي چې په فلاني حد کې غلط شوى دى غلط حد ثابتيږي (۵)

**۱۰۵ ـ ماده :**

د ميراث په دعوى کې د وراثت حصر او دهغه د جر سبب ضروري دى . (۶)

= يک دعوى جديد است بايد سمع گردد ، واگر آنـرا ترک نکند قابل سمع نمـى باشد . (۱)

**مادۀ ۱۰۲ :**

درذکر حدود اربعه بايد پدر وپدرکلان مالکان حدود تعريف شوند . (۲)

**تبصره :**

اشخاص مشهور از ماده فوق مستثنى ميباشد . (۳)

**مادۀ ۱۰۳ :**

اگر مدعى عليه يا مالک حد بگويد که فـلان حد طبق گفته مدعى نيست نـظر باينکه ادعا مذکور متضمن نـفى است قبول شده نميتواند . (۴)

**مادۀ ۱۰۴ :**

اگــر شــاهد اقرار کند که درفلان حد غلط شده ، حد غلط ثابت ميشود . (۵)

**مادۀ ۱۰۵ :**

دردعوى ميراث حصر وراثت وجر ارث وسبب آن ضرورى است . (۶)

(۱) : شرح المادة (١٦٢١) دررالحكام جــ (٤) صـــ (١٩٤) .

(۲) : جواهرالروايات صـــ (٦٢) .

(۳) :اَلْمَادَّةُ (١٦٢٣) مجلة الاحكام .ودررالحكام جــ (٤) صـــ (١٧٤). الاتاسي جــ (٥) صـــ (٣١) الهندية جــ (٤) صـــ (٨) .

(۴) : شرح المادة (١٦٢٣) دررالحكام جــ (٤) صـــ (١٩٨) .

(۵) : شرح المادة (١٦٢٣) دررالحكام جــ (٤) صـــ (١٩٨) .الاتاسي جــ (٥) صـــ (٣٤) .

(۶) : جواهرالروايات صـــ (٦١). الكاملية صـــ (١٣٠) .

**١٠٦ ـ ماده :**

د مــطلق ملكيت په دعوى كې ( بـې د سبب له ذكره ) د ســبب بيان او نه بيان تفاوت نه لري ، دا دعوى بې د ملكيت د سبب له ذكره د اورېدو وړده . (١)

**١٠٧ ـ ماده :**

د مبيعې د ثمنو په دعوى كې دمبيعــې د څلورو حدودو ذكر شرط نه دى . (٢)

**١٠٨ ـ ماده :**

په كومه رسمي مرجع كې محض په ادعا يا عرض د محكې پلورنه او پيرودنه ټاليداى نشي . (٣) .

**١٠٩ ـ ماده :**

همدا ډول پخوا ديو تن عادل شاهد يا دوو تنو مستورالحالو له شهادت څخه په محكمه كې دقاضي په حضوركې ، محض په عرض او د نكاح په ادعا كوم عقدچې له بل سره كيږي نه ټاليږي . (٤)

*****

***

*

**مادۀ ١٠٦:**

دردعوى ملكيت مطلق ( بدون ذكرسبب) بيان وعدم بيان سبب تفاوتى ندارد ، دعوى مذكوربدون ذكر سبب ملكيت قابل سمع است . (١)

**مادۀ ١٠٧:**

دردعوى ثمن مـبيعه ذكـر حدود اربعه مبيعه شرط نيست . (٢)

**مادۀ ١٠٨:**

به محض ادعا ويا عرض بكدام مرجع رسمــى بيع وشـرآء زمين معطل شده نميتواند . (٣)

**مادۀ ١٠٩:**

وهكذا قبل از شــهادت يكـنفر شـاهد عادل ويا دونفر مستور الحال بمحكمه بحضور قاضى بمحض عرض وادعاى نكاح عقدى كه باديگرى ميشود معطل نميگردد . (٤)

*****

***

*

(١) : ( الْمَادَّةُ ١٦٢٧ ) مجلة الاحكام . ودررالحكام جـ (٤) صـ (٢٠٣) .

(٢) : الْمَادَّةُ ( ١٦٢٥ ) مجلة الاحكام . دررالحكام جـ (٤) صـ (٢٠٠) والاتاسي جـ (٥) صـ (٣٩) . الهندية ج(۴) ص(۵)

(٣) : شرح المادة (١٦٣٥) دررالحكام ج (٤) ص (٢٣٣) بحرالرائق جـ (٧) صـ (٢٠٢) .

(۴): شرح المادة (١٦٣٥) دررالحكام ج (٤) ص (٢٣٣) . بحرالرائق جـ (٧) صـ (٢٠٢) .

## د محکوم علیه قیام له ځان څخه د حکم د رفع دپاره

**۱۱۰ ـ ماده :**
که مدعي علیه د ځان اوقاضي په منځ کې او یا دځان او دده د زوی په منځ کې یا د قاضي د پلار یا مور په منځ کې ددنیوي دښمنی دعوی وکړي ، وروسته له ثبوته دا حکم واجب الفسخ دی . (۱) .

**۱۱۱ ـ ماده :**
که محکوم علیه اعتراض وکړي چې قاضي د شاهدانو احوال نه دي کشف کړي ، او دشاهدانو په نه اهلیت باندي شرعي اثبات ولري ، فیصله د ماتیدو وړده . (۲) .

**۱۱۲ ـ ماده :**
که محکوم علیه اعتراض وکړي چې اساسا زموږ قاضیان په حنفي مذهب مقید دي اوهغه قضاوت چې قاضي دده په خصوص کې کړی دی مطابق د بل مذهب دی ، نو اعتراض یي وروسته له ثبوته د اوریدو وړدی . (۳)

## قیام محکوم علیه برای رفع حکم ازخود

**مادهٔ ۱۱۰ :**
اگر محکوم علیه عداوت دنیوی را بین خود وقاضی ویا بین خود وپسر ویا پدر ویا مادر قاضی نماید بعد ازثبوت حکم مذکور واجب الفسخ است . (۱)

**مادهٔ ۱۱۱ :**
اگر محکوم علیه اعتراض کند که قاضی احوال شهود را کشف نکرده وبر عدم اهلیت شهود اثبات شرعی داشته باشد فیصله قابل نقض است . (۲)

**مادهٔ ۱۱۲ :**
اگر محکوم علیه اعتراض کند که اساسًا قضات ما مقید بمذهب حنفی میباشد قضاوتی را که قاضی در مورد او نموده مطابق مذهب دیگر است اعتراض او بعد از ثبوت قابل سمع است . (۳)

(۱): معین الحکام صــ (۳۸) . شرح الْمَادَّةُ ( ۱۷۹٤ ) دررالحکام جــ (٤) صــ (٥٨٤) .
(۲) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۷۲٤ ) دررالحکام ,جــ (٤) صــ (٤٥۳) . والفتاوي الهندية (۳) ص (٥۳۲) .
(۳) : شرح المادة ( ۱۸۳۸) الاتاسي جــ (٦) صــ (۱٦۰) .

**١١٣ـ ماده :**
په هغه ميعادكې چې ددعوواوريدلو دپاره ټاكلى شوى دى ، كه قاضي له هغه ميعاد نه په ليرہ موده كې د دعوى د نه اوريدو حكم وكړي نو دا حكم ماتيږي . (١)

**مادۀ ١١٣ :**
در ميعاديكه براى سمع دعاوى تعيين شده اگر قاضى در كمتر ازآن ميعاد حكم بعدم سمع دعوى كند حكم مذكور نقض ميشود . (١)

**١١۴ـ ماده :**
كه محكوم عليه اعتراض وكړي چې قاضي د حكومت له تقييداتو تيرئ كړى دى په هغه شي كې چې دئ قاضي نه دى فيصله يي كړې ده، د اثبات په صورت كې دا حكم د ماتېدو وړدى . (٢)

**مادۀ ١١۴ :**
اگرمحكوم عليه اعتراض كند كه قاضى ازتقيدات حكومت تجاوز نموده در چيزيكه قاضى نميباشد فيصله كرده است حكم مذكور قابل نقض است (٢)

**١١۵ـ ماده :**
كه محكوم عليه ديوې وثيقې په اثبات دنفى متواتر اعتراض وكړي داوريدو وړدى . (٣)

**مادۀ ١١۵ :**
اگر محكوم عليه باثبات يک وثيقه از نفى متواتر اعتراض كند قابل سمع است . (٣)

**١١۶ـ ماده :**
كه محكوم عليه اعتراض وكړي چې فيصله بې د شاهدانو له شرعي او اصولي تزكيې پاى ته رسيدلې يا په شرعي ډول له تعليماتنامې سره سم تزكيه نه ده اجراء شوي ، دحقيقت په صورت كې دا فيصله ماتيدلاى شي . (٤)

**مادۀ ١١۶ :**
اگر محكوم عليه اعتراض نمايد كه فيصله بدون تزكيه شرعى واصولى شهود انجام يافته ، يا بطور شرعى وطبق تعليماتنامه تزكيه اجرآء نشده در صورت حقيقت فيصله متذكره نقض شده ميتواند . (٤)

(١) : الْمَادَّةُ ( ١٨٠١ ) مجلة الاحكام .
(٢) : الْمَادَّةُ ( ١٨٠١ ) مجلة الاحكام .
(٣) : الْمَادَّةُ (١٦٩٩) مجلة الاحكام . وشرح الاتاسي جـ (٥) صـ (٢٤٩) .
(۴) : شرح الْمَادَّةُ (١٧١٥) دررالحكام جـ (٤) صـ (٤٤١) وتنقيح الحامدية جـ (١) صـ (٣٣٤) الْمَادَّةُ (١٨٠١) مجلةالاحكام

**۱۱۷ ـ ماده :**

که محکوم علیه اعــتراض وکړي چې په ابـتدائیه یا مرافعـه فـیصله کـې شرعي شـرطونه په دعوی یا شــهادت یا د مدعي علیه په ځـواب کـې نه دي مراعات شــوي ، د حقیقت د اثـبات په صورت کې د اوریدو وړدی . (۱)

**۱۱۸ ـ ماده :**

څــرنګه چې په علانیه تزکیه کې پرته له (اشهد) کلمې د شــهادت نور ټول شــرایط په نظرکې نــیول کیږي ، که محکوم علیه اعــتراض وکړي چــې د شهادت شرطونه په علانـیه تزکـیه کې نه دي مراعات شوي ، په دې صورت کې چې حقیقت ولري فیصله د ماتیدو وړده . (۲)

**۱۱۹ ـ ماده :**

که محکوم علیه اعتراض وکړي چــې فیصله دوکالت او وصـایت پـه اساس بنا شوي ده، مګـر وکالت او وصـایت په دې دلائلو دحکم مدار نه دی ، نو دا فیصله ماتیدای شي . (۳)

**مادهٔ ۱۱۷:**

اگر محکوم علیه اعتراض نماید که در فــیصله ابـتدائیه یا مرافعه شرائط شــرعی در دعوی یا شــهادت یا جـواب مدعـی علیه مراعات نــشده درصورت اثبات حقیقت قابل سمع است . (۱)

**مادهٔ ۱۱۸:**

چون در تزکیه علانیه باستثنآء کلمه ( اشهد ) تمامًا شرائط شهادت در نظر گرفته میشود اگر محکوم علیه اعتراض کند که شرائط شهادت درتزکیه علانیه مراعات نشده درصورتیکه حقیقت داشته باشد فیصله قابل نقض است . (۲)

**مادهٔ ۱۱۹:**

اگر محکوم علیه اعتراض کند که فیصله براساس وکالت ، ووصایت بنا شده ، ولی وکالت ووصایت باین دلائل مدار حکم نیست فیصله متذکره نقض شده میتواند . (۳)

---

(**۱**) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۸ ) مجلة الاحکام .

(**۲**) : الْمَادَّةُ ( ۱۷۲۲ ) مجلة الاحکام . و دررالحکام , جـ (٤) صـ (٤٥١) .

(**۳**) : شرح المادة (۱٦۳۱) دررالحکام جـ (٤) صـ (۲۱٤) .

**۱۲۰ ـ ماده :**
که محکوم علیه اعتراض وکړي چې نظر شرعي دلایلو یا متواتري نفی ته ځما اقرار په فیصله یا وثیقه کې حقیقت نه لري د اوریدو وړدی . (۱)

**۱۲۱ ـ ماده :**
د دواړو خواؤ په اصلاح کې که یو اعتراض وکړي چې دا اصلاح مشروع نه ده یا وثیقه تر اشتباه لاندي راولي او له هغه کبله خپل ځان له اصلاح څخه بې خبره وښیې دحقیقت د اثبات په صورت کې د اوریدو وړدی . (۲)

**۱۲۲ ـ ماده :**
که محکوم علیه له همغه قاضي یا له بل قاضي څخه وثیقه په لاس ولري چې دده د ادعا اثبات وکړي اوله هغې څخه تقابل اوتناقض څرګند شي دا اعتراض د اوریدو وړدی . (۳)

**مادۀ ۱۲۰:**
اگر محکوم علیه اعتراض کند که نظر بدلائل شرعی یا نفی متواتر اقرار من در فیصله یا وثیقه حقیقت ندارد قابل سمع است . (۱)

**مادۀ ۱۲۱:**
در اصلاح جانبین اگر یک جانب اعتراض کند که اصلاح مذکور مشروع نیست ویا وثیقه را محل اشتباه قرار بدهد و ازآنرو خود را از اصلاح بی خبر نشان دهد در صورت اثبات حقیقت قابل سمع است . (۲)

**مادۀ ۱۲۲:**
اگر محکوم علیه از همان قاضی یا قاضی دیگری وثیقه بدست داشته باشد که اثبات ادعای اورا کند وازآن تقابل وتناقض مشاهده گردد اعتراض مذکور قابل سمع است . (۳)

(۱) : الْمَادَّةُ (۱٦۹۹) مجلة الاحکام .
(۲) : الْمَادَّةُ ( ۱۷۳۸ ) مجلة الاحکام .وشرح الاتاسي جـ (٥) صـ (۳۸۷) . الفتاوي الکاملیة صـ (۱٥۷) .
(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱۸٤۰ ) مجلة الاحکام .

**۱۲۳ ـ ماده :**
هغه اعتراض يا دفعه چې د متواتري نفی په صورت کې د اثبات متضمن وي ، قبلېدلای شي . (۱)

**۱۲۴ ـ ماده :**
که معترض وثيقه د اشتباه مورد وګرځوي، تحريف او تزوير پکښې ثابت کړي ، يا دهغې ثبت تر اشتباه لاندي وي او يا يي حدود قطعا تطبيق نشي ، داوريدو وړدی . (۲)

**۱۲۵ ـ ماده :**
که محکوم عليه اعتراض وکړي چې نه پخپله مقر اونه ورثه د وثيقې او فيصلې مقردي دتذکرې (دفترياداشت) دليدني او نورو مقنعه دلائلو له مخي که همداسي وي ، د اوريدو وړدی . (۳)

**مادۀ ۱۲۳ :**
اعتراض يا دفعيكه بصورت نفى متواتر متضمن اثبات باشد قبول شده ميتواند . (۱)

**مادۀ ۱۲۴ :**
اگر معترض وثيقه را مورد اشتباه قرار دهد و تحريف وتزوير را درآن ثابت نمايد ويا ثبت آن مورد اشتباه باشد ويا حدود آن قطعًا تطبيق نشود قابل سمع است . (۲)

**مادۀ ۱۲۵ :**
اگر محكوم عليه اعتراض كند كه نه خودش مقر ، ونه ورثه مقر وثيقه وفيصله ميباشد در صورت مشاهده تذكره (دفتر ياداشت) وغيره دلائل مقنعه اگر چنان باشد قابل سمع است . (۳)

(۱) : شرح الْمَادَّةُ (۱۶۹۹) دررالحكام جــ (٤) صــ (۳۹۳) .
(۲) : الْبَابُ الرَّابِعُ فِي بَيَانِ الْإِقْرَارِ. دررالحكام جــ (٤) صــ (۱۵۸).
(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۰ ــــــ ۱۸۰۱) مجلة الاحكام . وشرح المادة (۱۷۳۸) للاتاسي جــ (۵) صــ (۳۸۷) .الفتاوي الكاملية (۱۵۰)

**۱۲۶ ـ ماده :**

که محکوم علیه په شــرعي دلایلو سره اعــتراض وکړي چې قاضي د شــرعي مخاصمې د اهلیت مراعات نه دی کړی ، نو دا اعتراض اوریدل کیږي . (۱)

**۱۲۷ ـ ماده :**

که معترض د فیصلې یا وثیقې د دروغولو اوتردیدولو په غرض د رسمي منابعو په غیرقابل انکار اسنادو استناد وکړی دا اعتراض داوریدو وړدی (۲)

**۱۲۸ ـ ماده :**

که محکوم علیه اعتراض وکړي د ذوالیدي یا حقیت او ملکیت شاهدانو د حدودو دذکر په موضوع کې دملکیت نسبت دحدودو خاوندانوته نه دی کړی، که په فیصله کې همدا ډول وي ، نودا اعتراض د اوریــــدو وړدی ، فیصله ماتیدلای شي . (۳)

**۱۲۹ ـ ماده :**

که مدعي په خپله دعوی کې دحدودو په موقع کې دملکیت نسبت د حدودو خاوندانوته نه وي کړی اومحکوم علیه پرهغه اعتراض ولري داوریدو وړدی (۴)

**مادۀ ۱۲۶:**

اگــر محکوم علیه با دلائــل شــرعی اعتراض کند که قاضی اهلیت مخاصمه شــرعی را مراعات نــنموده اعــتراض مذکور شنیده میشود . (۱)

**مادۀ ۱۲۷:**

اگر معترض بغرض تکذیب وتردید فیصله و یا وثیقه باسناد منابع رسمی وغیر قابل انکار استناد کند اعتراض قابل سمع است . (۲)

**مادۀ ۱۲۸:**

اگر محکوم علیه اعتراض کند که شهود ذوالیدی ویا حقیت وملکیت در موضوع ذکر حدود نسبت ملکیت را به صاحبان حدودنکرده است اگر در فیصله چنان باشد اعتراض مذکور قابل سمع است فیصله نقض شده میتواند . (۳)

**مادۀ ۱۲۹:**

اگر مدعی دردعوی خود در موقع حدود نسبت ملکیت را به صاحبان حــــدود نکرده باشد و محکوم علیه اعتراض کند دعوی اش قابل سمع است . (۴)

---

(۱) : الْمَادَّةُ ( ١٦١٦ ) مجلة الاحكام .الفتاوي الهندية جــ (۴) صــ (۲).

(۲) : بمقتضي المواد ( ١٧٣٦ ـــــــ ١٧٣٧ ـــــــ ١٧٣٨ ) . مجلة الاحكام .

(۳) :جواهرالروايات صــ (٦٥) والْمَادَّةُ (١٦٢٣) مجلة الاحكام . الهندية جــ (٤) صــ (٨) .

(۴) : الْمَادَّةُ ( ١٦٢٣ ) مجلة الاحكام. جواهرالروايات صــ (٦٥) .

**۱۳۰ ـ ماده :**
که محکوم علیه اعتراض وکړي چې قاضي وروسته د مدعي له دعوی ، یا وروسته د شاهدانو له شهادته له ما څخه پوښتنه نه ده کړې ، چې ترڅو مې مدافعه یا جرحه کړې وای ، داوریدو وړده . (۱)

**۱۳۱ ـ ماده :**
که مدعي کوم سند په ابتدائیه محکمه کې نشي ښکاره کولای اوزیات تشریحات نشي ورکولای که دغه سند په مرافعه کې حاضرکړي په دې صورت کې چې ددعوی دماهیت له اصل څخه چې په ابتدائیه کې یې دائره کړې ده ونه وزي څرنګه چې په دلایلو کې زیات والی دی منلی کیږي . (۲)

**۱۳۲ ـ ماده :**
که په ابتدائیه کې دثمنو له قبض څخه ذکر نه وي شوی ، له هغه کبله د بیع په فسخ حکم صادرشوی وي او په مرافعه کې ئي ذکر کړي نو هغه دعوی دي نوي او له فیصلې څخه وتلي ونه ګڼي . (۳)

**مادۀ ۱۳۰:**
اگر محکوم علیه اعــتراض کند که قاضی بعد از دعوی مدعی ویا بعد از شهادت شهود از من نپرسیده است تا مدافعه ویا جرح مینمودم ،قابل سمع است . (۱)

**مادۀ ۱۳۱:**
اگر مــدعی سندی را در محکمه ابتدائیه ظاهر نتوانسته و تــشریحات مزید داده نتوانسته باشد اگر سندی را در مرافعه حاضر کند در صورتیکه از اصل ماهیــت دعوی که در ابتدائیه دائر کرده خارج نشود چون زیادت در دلائل است پذیرفته میشود . (۲)

**مادۀ ۱۳۲:**
اگر در ابـــتدائیه از قبض ثمن ذکر نشده باشد وازآن جهت حکم بفسخ بیع شده باشد ودر مرافعه ذکر کند آنــرا دعوی جـــدید وخارج فیصله نباید شناخت . (۳)

(۱) : اَلْمَادَّةُ ( ۱۸۱٦ ـــــ ۱۷۱٦ ) مجلة الاحکام .
(۲): اَلْمَادَّةُ ( ۱۸۰۰ ـــــ ۱۸۰۱ ) مجلة الاحکام .
(۳) جواهرالروایات صـ (۳۹) . اَلْمَادَّةُ (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

**۱۳۳ ـ ماده :**

که مدعي دپور دعوى وکړي اوپه هغه باره کې د قضا حکم وشي اومدعي علیه په مرافـــعه کې د پور رسیدلو یا دمدعي د ابراء ادعا وکړي ، قبلیدلای شي، مـــګر که یي ویلي وي چې له ده څخه یي هیڅ پور نه دی اخیستی اویا یي هیڅ معامله نه ده ورسره کړې ، او له هغه وروسته ووایي چې رسیدلی دی یا یي ابـــراء کـــړې ده نـــه شـــي قبلیدای . (۱)

**۱۳۴ ـ ماده :**

که مدعي علیه په ابتدائیه کې دزماني له مرور څخه څه نه وي ویلي په مرافعه کې هغه اظهارکړي نظر دې ته چې اصل مدعى به تو پیر نه کوي ، څرنګه چې د مدعي علیه دا ادعا د دلیل او بـــرهان زیاتوالی دی منل کیدای شي . (۲)

**۱۳۵ ـ ماده :**

که پیرودونکی په مرافعه کې دشفیع له خوا د شراء د طلب د ادعا اظهاروکړي هغه باید نوي دعوى ونه بولي . (۳)

**مادۀ ۱۳۳:**

اگر مدعى دعوى دين نمايد و درآن باره حكم قضاء شود ومدعى عليه در مرافعه از رسيدن دين يا ابرآء مدعى ادعا كند قبول شده ميتواند ، ولى اگر گفته باشد از نزدش هيچ دين نگرفته ، ويا همرايش هيچ معامله نكرده است ، وپس ازآن از رسيدن ويا ابرآء بگويد قبول شده نميتواند . (۱)

**مادۀ ۱۳۴:**

اگر مدعى عليه در ابتدائيه از مرور زمان نگفته باشد ودرمرافعه آنرا اظهار كند نظر باينكه اصل مدعى به تفاوت نميكند چون اين ادعاى مدعى عليه زيادت دليل وبرهان است قبول شده ميتواند . (۲)

**مادۀ ۱۳۵:**

اگر مشترى درمرافعه ادعاى طلب شرآء را ازجانب شفيع اظهار كند آنرا دعوى جديد نبايد شناخت . (۳)

---

(۱) : الْمَادَّةُ (۱٦٥٧) مجلة الاحكام .

(۲): المادة (۱۸٤۰) . مجلة الاحكام .

(۳) : الفتاوى الهندية , الفصل العشرون في الشفعة جـ (٦) صــ (٤٢٣) . تنقيح الحامدية جـ (۲) صــ (۱۸٤) .

**۱۳۶ـ ماده :**

که محکوم علیه اعتراض وکړي چې قاضي نسبت د مدعي ادعا ته زه ملزم ګرځولی یم ، یا دمدعي دمورث د پور په ورکولو يي پرما حکم کړی دی ، مګر زه پخپله دده یا دده د مورث رسید ، یا ابراء خط په دې دعوی کې په لاس لرم ، د اوریدو وړدی . (۱)

**۱۳۷ـ ماده :**

هر هغه څه چې دقاضي دقضا دمنع یا دبطلان موجب وي یا دعوی چې شرعا داوریدو وړ نه وي یا اصولو دهغې د اوریدو جواز نه وي ورکړی اوقاضي دهغه په خلاف قضاوت وکړي او محکوم علیه په هغه باندي اعتراض وکړي داوریدو وړدی . (۲)

**۱۳۸ـ ماده :**

که چیري مرافعه محکمه دمستانف ( مرافعه غوښتونکي ) اعتراضات وارد وپیژني یا په فیصله کې نواقص ووینې دابتدائیې حکم فسخ کوي سر له سره نوی دوران ورکوي اوکنه دابتدائیې حکم تائید وي . (۳)

**مادۀ ۱۳۶ :**

اگر محکوم علیه اعتراض کند که قاضی نسبت بادعای مدعی مرا ملزم قرار داده ویا به ادای دین مورث مدعی برمن حکم کرده ولی من رسید یا ابرآی خود او یا مورث او را در دعوی مذکور بدست دارم قابل سمع است . (۱)

**مادۀ ۱۳۷ :**

هر آنچه موجب منع یا بطلان قضاوت قاضی باشد ویا دعوی که شرعًا قابل سمع نباشد ویا اصول باستماع آن جواز نداده باشد وقاضی برخلاف آن قضاوت نماید ومحکوم علیه برآن اعتراض کند قابل سمع است . (۲)

**مادۀ ۱۳۸ :**

هرگاه محکمه مرافعه اعتراضات مستانف (مرافعه خواه) وارد بشناسد ، ویا در فیصله نواقصی مشاهده کند حکم ابتدائیه را فسخ نموده سر از نو دوران میدهد ، والا حکم ابتدائیه را تائید مینماید . (۳)

(۱) : الْمَادَّةُ ( ۱۸٤۰ ) مجلة الاحكام .

(۲) :المادة (۱٦۱٦) مجلة الاحکام وشرح الْمَادَّةُ (۱۸۳۸) دررالحکام جـ (٤) صـ (٦۸٦) الفتاوی الکاملیة ص (۱۱۷)

. (۳) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۸ ) مجلة الاحكام . وشرح الاتاسي جـ (٦) صـ (۱٦٥) ودررالحکام جـ (٤) صـ (٦۹۰) .

**١٣٩ ـ ماده** :

په هغو حقوقو کې چې په ارث وړل کیږي یا هغه شیان چې په متروکه پوري اړه لري اوله وارث څخه اخیستل کیږي نوکه موروث وروسته دابتدائیې له فیصلې یا د مرافعې له فیصلې مړ کیږي ورثه کولای شي چې مرافعه او تمیزوغواړي اوخپل اعتراضونه خپلې مرجع ته وړاندي کړي . (١)

**١٤٠ ـ ماده** :

که محکوم علیه اعتراض کوي چې په ابتدائیه فیصله کې داستظهار یمین (سوګند) نه دی ورکړل شوی داوربدو وړ دی

**تبصره** : په شپږو لاندي موادوکې قاضي بې له غوښتني مدعي ته سوګند ورکوي دا سوګند دقضا له حقوقو څخه دی چې هغه د استظهار سوګند بولي .

**الف** : که دشفیع حق وروسته له شرعي اثبات دقاضي دقضاوت موجب وګرځي لازم دی چې قاضي شفیع ته قسم ور کړي چې شفعه ئي په خپل وخت غوښتي او دخپلي شفع حقوق ئي په هیڅ صورت له منځه نه دي وړي .

**مادهٔ ۱۳۹** :

درحقوقی که بارث برده میشود ، ویا چیزهائیکه به متروکه ارتباط داشته واز وارث گرفته می شود اگر مورث بعد از فیصله مرافعه یا فیصله ابتدائیه فوت میکند ورثه میتوانند که مرافعه و تمیز خواسته و اعتراضات خود را بمرجعش تقدیم دارند . (۱)

**مادهٔ ۱۴۰** :

اگر محکوم علیه اعتراض میکند در فیصله ابتدائیه یمین ( قسم ) استظهار داده نشده قابل سمع است .

**تبصره**: در شش مواد آتی قاضی بدون طلب مدعی را قسم میدهد واین قسم ازحقوق قضاء است که آنرا قسم استظهار نامند :

**الف** - اگر حق شفیع بعد از اثبات شرعی موجب قضاوت قاضی گردد لازم است که قاضی شفیع را سوگند بدهد : که شفع را بوقت آن خواسته وحقوق شفع خود را بهیچ صورت از بین نبرده است ؟

(١) : شرح الْمَادَّةُ ( ١٨٣٧ ) للاتاسي جـ (٦) صـ (١٥٧ ـ ١٥٨) . الفوائد الزينية صـ (١٧٧) .

**ب** : هغه ښځه چې د بلوغ خیار لري او له قاضي څخه دخپلي نکاح فسخ غواړي قاضي دهغې دنکاح په فسخ حکم نشي کولای مګر هلته چې هغې ته سوګند ورکړي ، چې په خپل بلوغ باندي له علم نه وروسته یي ژر تر ژره د خپلي نکاح فسخه غوښتې ده . ؟

**جـ** :که پیرودونکي دعیب په سبب مبیعه رده کړي قاضي دي هغه ته سوګند ورکړي چې آیا په دې عیب راضي شوی نه دی . ؟

**د ـ** : که یوشخص غایب وي او ښځه یي د خپل میړه له ماله نفقه وغواړي ، قاضي دي قسم ورکړي چې آیا میړه دېته نفقه نه ده پرې ایښې ، او یا یي دا دنکاح له قید څخه نه‌ده خوشي کړې ، ؟

**هـ** : د استحقاق په دعوی کې چې یو شی دبل چا په لاس کې وي او مستحق د استحقاق په ډول دعوی وکـــړي وروسته له ثبوته که قاضي حکم کوي ، لازم دی چې لومړی مدعي ته قسم ورکړي چې آیا مدعی به یي پر بلچا پلورلی نه دی ، او چاته یي بخښلی نه دی اوچاته یي د هدیې او صدقې په ډول نه ده ورکړی . ؟

**و ـ** : قاضي پرمړي باندي د پور یا کوم بل حق مدعي ته پخوا له حکمه =

**ب**- زینکه خیار بلوغ دارد واز قاضی فسخ نکاح خـود را مـطالبه میکند ، قاضی بـه فسخ نــکاح او حکم کرده میتواند ، مـــگر آنگاه کـه او را قسم بدهد : که بعد از علم به بلوغ خود فورًا فسخ خود را خواسته است ؟ .

**جـ**:اگر مشتری مبیعه را بسبب عیب رد کند قاضی باو قسم بدهد که: آیا به عیب مذکور راضی نشده است ؟.

**د**- اگر شخصی غائب باشد زنش از مـــال شوهر نفقه بخواهد قاضی قسم بدهد : کـــه آیا از شوهر برای وی نفقه نمانده ویا ویــرا ازقید نــکاح فارغ نساخته است ؟ .

**هـ** : در دعوی استحقاق که چـــیزی بدست دیگری باشد و مستحق آنـــرا بطور استحقاق دعـــوی نماید بعد از ثبوت اگر قاضی حکم میکند لازم است که اول مدعی را قسم بدهد : کـــه آیا مدعی به را بکسی نفـــروخته است و بکسی نه بخشیده است وبکسی طور هدیه وصدقه نداده است ؟ .

**و** - قاضی مدعی دین یا حقی را بر متوفی قبل از حکم قسم بدهد ، که آیا =

= قسم وركوي چې آيا مدعى به بالذات يا بالواسطه د مړي له خوا ده ته نه دی رسيدلی . ؟

**تبصره :**
د استظهار سوگند ( قسم ) يوازي د مړي پرذمه باندي د پور په دعوی كې منحصر نه دی ،بلكي ټولو هغو حقوقو ته چې د مړي متروكې ته متوجه وي كه عين وي يا دين شامل دی . (١)

**١٤١ ـ ماده :**
كه مدعي له مدعي عليه سره خپله دعوی د ابـتدائيې يا مرافعې قاضي ته وړاندي كړي اوخپل حقوق له مدعي عليه څخه وغواړي او وروسته له هغه بې له شرعي عذره ځان گوښه كړي او حاضر نشي دمدعي عليه د تشويش او سرگردانۍ موجب شي ، نو دا محكمې كولای شي چې شرعا دجگړې پرېكړه حكم وكړي . (٢)

**١٤٢ ـ ماده :**
قسم اوله قسم څخه نكول دقاضي اوقضايي مجلس په حضوركې اعتبار لري نه غيرله =

= مدعی به بالذات یا بالواسطه از جانب متوفی برایش نرسیده است ؟ .

**تبصره:**
یمین ( قسم ) استظهار تنها در دعوی دین برذمه متوفی منحصر نیست بلکی بـه تمام حـقوقی که بمتروکه متوفی متوجه میباشد شمولیت دارد عین باشد یادین . (١)

**مادۀ ١٤١:**
اگر مدعی دعوی خود را با مدعی علیه بحضور قاضی ابتدائیه یا مرافعه تقدیم نماید ، وحقوق خو درا از مدعی علیه طلب نماید ، وپس ازآن بې عذر شرعی کناره جوئی نموده حاضر نشده وموجب تشویش وسر گردانی مدعی علیه گردد محاکم مذکور میتواند که شرعًا به قطع خصومت مذکور حکم نمایند . (٢)

**مادۀ ١٤٢:**
قسم ونکول از قسم بحضور قاضی ومجلس قضائی اعتبار دارد نه درغیر =

(١) : الْمَادَّةُ ( ١٧٤٦ ) مجلة الاحكام . والاتاسی جــ (٥) صــ (٤١٢) . ودررالحكام جــ (٤) صــ (٤٩٩) .
(٢): المادة (١٨٠١) مجلة الاحكام .

=هغواوکه له دینه خلاف واقع شي معترض اعتراض وکړي د اورېدو وړ دی . (۱)

**۱۴۳ ماده:**

ځرنګه چي دزمان دمرور شهود اوپر بینه ددعوو دنه اورېدوموده چي دزمان مرور نه دی او ددعوی په نه اوریدوکي داخل نه دی د تقدم حق لري که قاضي له هغه نه مخالف حکم وکړي او معترض اعتراض وکړي د اوریدو وړدی . (۲)

**تبصره :**

عدلیه محکمې دي دبیناتو په ترجیح او دزمان د مرور په احکامو دکتاب القضاء اوکتاب الشهادات دمجلة الاحکام د مرور زمان په فصل او باب عمل وکړي . (۳)

**تبصره :**

د دعوو دنه اورېدو میعاد په عام ډول نظر د دعوو دنه اوریدو د اصولو (۳) مادې ته ، پرته له شفع پنځلس کلونه ټاکلي شوي دي . (۴)

=آن ، اگر خلاف آن واقع شود ومعترض اعتراض کند قابل سمع است . (۱)

**مادۀ ۱۴۳:**

چون شهود مرور زمان ومدت عدم استماع دعوی بر بینه که مرور زمان نیست و در عدم استماع دعوی داخل نبوده حق تقدم دارد اگر قاضی مخالف آن حکم کند ومعترض اعتراض نماید قابل سمع است . (۲)

**تبصره :**

محاکم عدلیه در ترجیح بینات واحکام مرور زمان به فصل وباب مرور زمان کتاب القضاء وکتاب الشهادات مجلة الاحکام العدلیه عمل نمایند . (۳)

**تبصره :**

میعاد عدم استماع دعاوی عمومًا نظر بماده (۳) اصول استماع دعاوی باستثنای شفع ، پانزده (۱۵) سال تعیین شده است . (۴) .

(۱) : الْمَادَّةُ (١٧٤٤) مجلة الاحكام .

(۲) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ (١٨٠١) مِنْ الْمَجَلَّةِ .ودررالحكام جــ (٤) صـــ (٢٩٧) .

(۳) : الْبَابُ الثَّانِي فِي حَقِّ مُرُورِ الزَّمَنِ . دررالحكام جــ (٤) صـــ (٢٩٢) .

(۴) : الْمَادَّةُ ( ١٦٦٠ ) مجلة الأحكام.

**۱۴۴ ـ ماده :**
اقرار له شاهدانوسره په یوه موضوع کې یوځای کیدای نشي بلکي شاهدان د منکر شخص په مقابل کې غوښتل کيږي . (۱)

**تبصره :**
لاندي مواضع له پورتنۍ مادې څخه مستثنی دي : (وکالت ، وصایت ، پر مړي د پور اثبات ، استحقاق ) . (۲)

**۱۴۵ ـ ماده :**
که په کومه موضوع کې اقرار او شاهدان یو ځای سره موجود شي پرته له استثنائي مواردو حکم پر اقرار کيږي ، نه پر شاهدانو او له هغه څخه په مخالفت کې د معترض اعتراض د اوریدو وړدی . (۳)

**تبصره :**
که کوم شخص په چا باندي حقوقي دعوی ولري او مدعي علیه په اول کې انکار وکړي قاضي دي شرعا وروسته ددعوی له صحته له مدعي څخه شاهدان وغواړي ، وروسته دمدعي دشهودو له اقامې که مدعي علیه دشهودو تصدیق وکړی . او یا یې =

**مادۀ ۱۴۴:**
اقرار با شهود در یک موضوع جمع شده نمیتواند بلکه شهود بالمقابل شخص منکر خواسته میشود . (۱)

**تبصره:**
مواضع آتی از ماده فوق مستثنی است : ( وکالت ، وصایت ، اثبات دین بر متوفی، استحقاق) . (۲)

**مادۀ ۱۴۵:**
اگر اقرار وبینه ( شهود ) د رکدام موضوع باهم موجود گردد بجز موارد استثنائی حکم باقرار میشود نه به شهود در مخالفت ازآن اعتراض معترض قابل سمع است . (۳)

**تبصره:**
اگر شخصی برعلیه کسی دعوی حقوقی دارد ومدعی علیه در اول انکار کند قاضی شرعًا بعد از صحت دعوی از مدعی طلب شهود نماید بعد از اقامه شهود مدعی ، مدعی علیه تصدیق شهود نماید ویا باصل مدعی به برای مدعی اقرار =

(۱) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۱۷ ) دررالحکام جـ (٤) صـ (٦٢٨) . الفتاوي الکاملیة (۱۲۳) .
(۲): شرح الْمَادَّةُ (۱۸۱۷) دررالحکام . جـ (٤) صـ (٦٢٨) . وشرح المادة (١٦٣٤) الاتاسي جـ (٥) صـ (٨٦) .
(۳) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۱۷ ) دررالحکام جـ (٤) صـ (٦٢٨) وشرح المادة (١٨١٧) الاتاسي (٦) صـ (٩٦) .

= دمدعي دپاره په اصل مدعی به اقراروکړی قاضي به دمدعي دپاره دمدعي عليه د اقرار له مخي حکم وکړي ، نه دشهودوله مخي (۱)

**۱۴۶ ـ ماده :**

دمرافعې محكمه يا تـميز دي يوازي د معترضينو اعتراضات په نـظر کې نه نيسي بلکي دااعتراضونه دي په فيصله کـې دغور او ژوري کـتني دپاره وسـيله وبولي . (۲)

**تبصره :**

که دمعترض اعتراضونه پرفيصله باندي شوي نه وي مګرفيصله پخپله شرعي نواقص ولري چې دماتېدو وړ وبلل شي لوړه محكمه کولای شـي چـې دهغې نواقص په نظر کې ونيسي او اقدامات وکړي . (۳)

**۱۴۷ ـ ماده :**

هغه اعتراضونه چې مرافعې ته وړاندي کيږي د تميز په محكمه کې به هم په نظر کې نيول کيږي . (٤)

**تبصره** : بايد دا اعتراضونه يا فيصله د تميز غوښتني په صورت کې د تميز رياست ته وليږل شي . (۵)

=کند قاضـی برای مدعی بنا براقـرار مدعی عليه حکم خواهد کرد نه بنا بر شهود . (۱)

**مادۀ ۱۴۶:**

محكمه مرافعه يا تميز تنها اعتراضات معـترضين را درنـظـر نميگيرند بلکی اعتراضات متذكره را يک وسيله برای غور ودقت در فيصله ميشمارند . (۲)

**تبصره:**

اگر اعتراضات معترض برفيصله وارد نباشد ولی فيصله خـود بـخود دارای نواقص شرعی باشد که قابل نقض شمرده شود ، محكمه بالاتر ميتواند نواقص آنرا درنظر گرفته اقدامات نمايد . (۳)

**مادۀ ۱۴۷:**

اعتراضاتی که به مرافعه تقديم ميگردد در محكمه تميز نيز در نظر گرفته ميشود . (۴)

**تبصره:** بايـد اعـتراضات مـتذكره بافـيصله درصورت تمـيزخواهـی به رياست تميز فرستاده شود . (۵)

(۱) : شرح الْمَادَّةُ ( ١٧١٦ ) دررالحكام جـ (٤) . وشرح الْمَادَّةُ (١٨١٧) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٢٨) . الاتاسي جـ (٦) صـ (٩٦) . الفتاوي الكاملية صـ (١٢٣) .

(۲) : شرح المادة (١٨٣٨) الاتاسي جـ (٦) صـ (١٦٥) .

(۳) : شرح المادة (١٨٣٨) الاتاسي جـ (٦) صـ (١٦٥) .

(۴) : شرح المادة (١٨٣٩) الاتاسي جـ (٦) صـ (١٦٥ـــ ١٦٦). الْمَادَّةُ ( ١٨٠١ ) مجلة الاحكام

(۵) : شرح المادة (١٨٣٩ ) الاتاسي جـ (٦) صـ (١٦٥) .

**۱۴۸ ـ ماده :**

هغه دذواليدي شـهود چې د مطلق ملكيت يا حقيت اونوروپه دعوى كې غوښتل كيږي او له هغه نه دخصمينو تعرفه او دمواضعې داحتمال رفع په نظر كې ده كه دمحكمو له خوا دا شهود تزكيه شوي نه وي دفـيصلې دتــرديـد موجب او د قضا دحكم د ماتيدو سبب نه دي . (۲)

**۱۴۹ ـ ماده :**

كه دواړو محكمو ( ابتدائيې اومرافعې ) ددعوى د شرعي شرا ئطو د فقدان له حيثه وروسته له هغه چې مدعي ته يي شرعا درې كرته د دعوى په تصحيح امر وركړى وي ، او خپله دعوى صحت نكــړي او پخپله غلطه دعــوى اصرار وكړي نو له دې امله ددعــوى په نه اوريدو حكم وكړي ، په دې صورت چې فيصله نور نواقص ونه لري نو محكوم عليه يوازې په دې كې چې شرعي شرايط يې درلودل او محكمو هغه نه دي اوريدلي تميز طلب كيداى شي او بس، پس له هغه ددواړو محكمو په فيصله ددعوى دتصحيح د اعتراض مجال نه پاتي كيږي . (۲)

**مادۀ ۱۴۸:**

شهود ذواليدى كه در دعوى ملكيت مطلق يا حقيت وغيره خواسته ميشوند و ازآن تعــرفه خصمين ورفع احتمال مواضعه درنظر است اگر ازطرف محاكم شهود متذكره تزكيه نشده باشد موجب ترديد فيصله وسبب نقض حكم قضاء نيست . (۲)

**مادۀ ۱۴۹:**

اگر محاكم دوگانه ( ابتدائيه ومرافعه ) از حيث فقدان شرائط شرعى دعوى بعد از اينكه مدعى را شرعًا سه مرتبه به تصحيح دعوى امر داده باشد ودعوى خود را صحت نكند وبر دعوى غلط خود اصرار نموده ازآنرو حكم بعدم سمع دعوى نمودند بصورتيكه فيصله نواقص ديگرى نداشته باشد محكوم عليه تنها در اينكه شرائط شرعى = داشته ومحاكم آنرا نه شنيده ، تميز طلب شده ميتواند وبس وبعد ازآن بر فيصله هاى مــــحاكم دوگانه مجال اعتراض تصحيح دعــوى باقى نمى ماند . (۲)

(۱) : المادة (۱۸۰۱ ) مجلة الاحكام .

(۲) : الْمَادَّةُ (۱۸۳۹) مجلة الاحكام. شرح الْمَادَّةُ (۱۸۱٦) دررالحكام جـ (۴) صـ (٦۲٦) .

## د حكم طريقې

**١٥٠ ـ ماده :**
د شرعي حكم موجبه اسباب : عبارت له اقـــرار، شاهدان ، قســـم ، نكول او قاطعه قرينې څخه دي .(١)

**تبصره :**
د شرعي حكم موجبه اسبابو تفصيلات دعدلـــي محكمو په اداري اصولنامه كې موجود دي . (٢)

**١٥١ ـ ماده :**
څه وخت چې متخاصمين د قاضي په وړاندي حاضر شي لومړى قاضي مدعي تــه ددعوى د بـــيان پـه غـرض موقع وركوي . (٣)

## طريق حكم

**مادۀ ١٥٠:**
اسباب موجبه حكم شرعى عبارت از اقرار، بينه ( شهود ) قســم، نكول ،قرينه قاطعه است . (١)

**تبصره:**
تفصيلات اسباب موجبه حكم شرعى دراصولنامه ادارى محاكم عدلى موجود است . (٢)

**مادۀ ١٥١:**
وقتيكه متخاصمين بحضور قاضى حاضرگردند قاضى اول مدعى را بغرض بيان دعوى موقع ميدهد . (٣)

(١) : الاتاسي جـ (٦) صـ (١٢٩) .
(٢): شرح المادة (١٨٢٧) جـ (٦) صـ (١٢٩). و دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٠٨) .
(٣) : الْمَادَّةُ ( ١٨١٦ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .

**۱۵۲ ـ ماده :**

که مدعي خپله دعوی له یاده نشوای ویلای نو قاضي دده دعوی په لیکنه سره اوریدلای شي مګرهغه څه چې يي لیکلي دي د قاضي په حضور کې يي ولولي ، او کلماتو ته د اشارې په موقع کې دي هغه یا دغه اشاره وکړي . (۱)

**۱۵۳ ـ ماده :**

که دمدعي دعوی بل شخص لیکلي وي نو لازمه ده چې قاضي هغه ولولي او مدعي هغه موقع په موقع تصدیق کړي ، بیا هم له پورتنـــۍ مادې سره سم اشارې دي له فامه نـه غـورځـول کیږي . (۲)

**۱۵۴ ـ ماده :**

په منقول کې ددعوی له صحت اوپه غیر منقول کې ددعوی له صحت اود ذوالیدي دشهودو اودتعرض په دفع کې پخپله دمدعي ددعوی له صحت او دذوالیدي له شاهدانو څخه وروسته دي له مدعي علیه څخه پوښتنه و شي چې دمدعي په ذکر شوې دعوی کې څه وایې ؟ . (۳)

**مادۀ ۱۵۲:**

اگر مدعی دعوی خود را از یاد گفته نمیتوانست قاضی دعوی اورا کــتبًا شنیده میتواند ولی باید آنچه نـوشته است بحضور قاضی بخواند ودرموقع اشـــاره بــکلمات این یا همین اشاره نماید . (۱)

**مادۀ ۱۵۳:**

اگر دعوی مدعی را شخص دیگــری تحــریر نموده باشد لازم است قاضی آنرا خوانده ومدعی موقع بموقع آنــرا تصدیق نماید بازهم طبق ماده فوق از اشاره صرف نظر نشود . (۲)

**مادۀ ۱۵۴:**

بعد ازصحت دعـــوی در منقول وصحت دعوی وشهود ذوالــــیدی در غـــیر منقول وصحت دعوی وشــــهود ذوالیدی خود مدعی در دفع تعرض از مدعی علیه پرسیده شود که در دعوی متذکره مدعی چه میگوید . (۳)

(۱) : شرح المادة (۱۶۱۳) دررالحکام جـ (۴) صـ (۱۷۴) .

(۲) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۱٦ ) المجلة الاحکام .

(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۱٦ ) المجلة الاحکام .

**تبصره** : د تعرض ددفع په دعوی کې دي مدعي علیه ته وویل شي چې خپل حجت او بـرهان حاضر کړي او یا دي په مدعی به متعرض نه شي . (۱)

**۱۵۵ ـ ماده** :

قاضي دي نه پریږدي چې مدعي علیه دمدعي د ادعا په موقع کې او یا مدعي د ځواب ویلو په موقع کې پر مدعي علیه مداخله وکړي ، بلکي مجلس دي په یو عالم سکون ، ارامۍ ، اطمنان ، او وقار سره اداره شي . (۲)

**۱۵۶ ـ ماده** :

که مدعـي علیه په ځواب کې اقـرار وکړی ، نو شرعا دده له اقرار سره سم پرده باندي حکم صادریږي . اوکه انکار وکړي نو له مدعي څخه له دعوی سره سم شاهدان غوښتل کیږي او که مدعی علیه نه انکار وکړي اونه اقرار بلکي سکوت وکړي ، نو دا سکوت کـتمتې انکار بلل کیږي . (۳)

**۱۵۷ ـ ماده** :

که مدعي دمدعي علیه له انکارڅخه وروسته خپله دعوی له شرعي سره سم په اثبات ورسوي نو له دفع اوجرح څخه =

**تبصره**: در دعوی دفع تعرض برای مدعی علیه گـفته شـود که حجت وبـرهان خود را حاضر کـند ویا در مدعی به مـتعرض نـشود . (۱)

**مادۀ ۱۵۵**:

قاضی نگذارد که مدعی علیه در موقع ادعای مدعی ویا مدعی درموقع جواب گفتن برمدعی علیه مداخله نماید بلکی مجلس بایک عالم سکون و آرامی و طمانیت ووقار اداره شود . (۲)

**مادۀ ۱۵۶**:

اگر مدعی علیه در جواب اقـرار کـند شرعًا طبق اقرارش برعلیه اوحکم صادر میشود ، واگر انکار کند از مدعی طبق دعوی طلب ( شهود ) میشود اگر مدعی علیه نه انکار کـند ونه اقـــرار بلکی سکوت نـماید سـکوت مذکـــور عینًا انکار دانـسته میشود . (۳)

**مادۀ ۱۵۷**:

اگرمدعی بعد ازانکارمدعی علیه دعوی خودرا مطابق مقررات شرعی باثبات رساند بعد از عــجز مدعی علیه ازدفع =

(۱): الفتا الکاملیة صـ (۱۱۳) .

(۲) : شرح المادة (۱۸۲۴) الاتاسي جـ (۶) صـ (۱۲۳) .

(۳) : اَلْمَادَّةُ ( ۱۸۲۲ ) مجلة الاحکام . والاتاسي جـ (۶) صـ (۱۱۸) .

= دمدعي عليه له عجزڅخه وروسته او له شرعي تزکيې څخه وروسته قاضي خپل حکم صادر وي ( دشاهدانو تزکيه د تزکيې له تعليما تنامې سره سمه اجراء کيږي ) . (١)

**تبصره** :
ددفع مفاد دعوی له منځه وړل دي ، او جرح شاهدان له منځه باسي . (٢)

**١٥٨ ـ ماده** :
که شاهدان خپل شهادت له ياده ونشي ويلای يا د څلورو حدودو بيانول دهغو د زياتوالي په نسبت سخت وي ، کولای شي چې خپل شهادت دکاغذ له مخې د محکمې په حضورکې ولولي او داشارې موقع دي له لاسه نه ورکوي . (٣)

**١٥٩ ـ ماده** :
که مدعي ونشي کولای چې خپله ادعا ثابته کړي او ووايي چې شاهدان نه لرم اودمدعي عليه سوګند وغواړي قاضي کولای شي چې دمدعي دغوښتني لمخې مدعي عليه ته قسم متوجه کړي . (٤)

وجرح وبعداز تزکيه شرعی قاضی حکم خودرا صادر ميکند ( تزکيه شهود طبق تعليماتنامه تزکيه اجرآء ميشود ) . (١)

**تبصره**:
مفاد دفع از بين بردن دعوی است ، وجرح شهود را از بين ميبرد . (٢)

**مادۀ ١٥٨**:
اگر شهود شهادت خود را از ياد گفته نتوانند ويا گفتن حدود اربعه نسبت به کثرت آن دشوار باشد ميتوانند شهادت خود را کتبًا تقديم کنند و شهادت خود را از روی نوشته بحضور محکمه قرآئت نمايندوموقع اشاره رااز دست ندهند (٣)

**مادۀ ١٥٩**:
اگرمدعی نتواندادعای خود راثابت کند وبگويدکه شهود ندارم وحلف مدعی عليه را مطالبه کند قاضی ميتواند بنا برطلب مدعی بمدعی عليه قسم را متوجه نمايد . (٤)

(١) : الْمَادَّةُ ( ١٨٢٧ ) و (١٨٢٨) . مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ . الْمَادَّةُ ( ١٨٠١ ) مجلة الاحكام
(٢) : الْمَادَّةُ المادة (١٦٣١) و ( ١٧٢٤ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .
(٣) : الهندية جــ (٣) صـــ (٤٦٢) . الهندية كتاب المحاضر، جــ (٦) صـــ (١٦٠) .
(٤) : الْمَادَّةُ ( ١٧٤٢ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ . وشرح الاتاسي جــ (٥) صـــ (٣٩٤) .

**۱۶۰ـ ماده :**

که مدعي عليه سوګـند ته ځان جوړ کړي وي شرعا سوګـندکوي اوکه نه له سوګند څخه به نکول وکړي . (۱)

**۱۶۱ـ ماده :**

دمدعي عليه د سوګند په صورت کـې قاضي دفعلي جګړې په ترک حکم کـوي اوکه پرمدعي عليه د قسم متوجه کولو د تکرارپه صورت کې مدعي عليه نکول وکړي ، نو هغه دمدعي عليه اقرار بولي او دمدعي عليه په الـزام حکم صادر يږي . (۲)

**تبصره :**

له قسم څخه دنکول په موضوع کې دقصاص دعوی له پورتنۍمادې څخه مستثنی ده . (۳)

**۱۶۲ـ ماده :**

لکه څرنګه چې مدعي په خپله شرعي ادعاکې آزاد دی مدعي عليه هم د خپل ځواب په موقع کـــې په هرډول خپلو شرعي او اصولي مدافعاتوکې دمدعي ددعوی دفع کولای شي . (۴)

**مادهٔ ۱۶۰:**

اگرمدعی علیه آماده سوگندباشد شرعًا حلف مینماید و الانکول از قسم خواهد نمود . (۱)

**مادهٔ ۱۶۱:**

درصورت حلف مدعی علیه قاضی حکم بترک خصومت فعلـی مینماید ودرصورت تکرار عرض قسم برمدعی علیه ا گـر مدعـی علیه نکول کند آنـرا اقرار مدعی علیه دانسته حکم بالزام مدعی علیه‌صادر نماید . (۲)

**تبصره:**

در موضوع نکول از قسم دعوی قصاص ازماده فوق مستثنی است . (۳)

**مادهٔ ۱۶۲:**

چنانکه مدعی در ادعای شرعی خود آزاد است ، مدعـــی علیه نیز در موقع جواب خود بهرگونه مدافعات شرعـی و اصولی خود دعوی مدعی را دفع کرده میتواند . (۴)

---

(۱) : الْمَادَّةُ ( ١٧٤٢ ) مجلة الاحكام .

(۲) : الْمَادَّةُ ( ١٧٤٢ ) الاتاسی جـ (٥) صـ (٣٩٤) .

(۳) : تکملة ردالمحتار جـ (۱) صـ (۳۴۹).

(۴) : الْمَادَّةُ ( ١٦٣١ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ . ودررالحكام جـ (٤) صـ (٢١١) .

**۱۶۳ ـ ماده :**

ددعوی ددفع دفع اوله هغې نه زيات صحت لري لکه څرنګه چې دلومړي قاضي (ابتدائيه) په حضورکې اوريدل کيدای شي ددوهم قاضي ( مرافعه ) په حضورکې هم داوريدو وړدي . (۱)

**تبصره :**

هغه کسان چې په حيله او تزوير کې شهرت لري له پورتنۍ مادې څخه مستثنی دي . (۲)

**۱۶۴ ـ ماده :**

لاندني مراتب ددفع له اوريدو څخه مستثنی دي :

**الف** : په دې حال کې چې مدعي عليه ووايي دفع لرم او د خپلې دفع طريقه بيان نکړي .

**ب** : خپله دفعه بيان کړي مګر ووايي چې څما ددفع شهود په ښارکې حاضر نه دي .

**ج** : فاسده دفع چې داوريدو وړنه وي بيان کړي . (۳)

**۱۶۵ ـ ماده :**

که مدعي عليه داسي دفع وکړي چې =

**مادهٔ ۱۶۳:**

دفع دفع دعوی وزياده ازآن صحت داردچنانکه بحضور قاضی اول ( ابتدائيه) مسموع شده ميتواند بحضور قاضی دوم ( مرافعه) نيز قابل سمع است . (۱)

**تبصره:**

اشخاصيکه به حيله وتزوير شهرتی داشته باشند ازماده فوق مستثنی است . (۲)

**مادهٔ ۱۶۴:**

مراتب آتی از استماع دفع مستثنی است :

**الف**: در حاليکه مدعی عليه بگويد که دفع دارم وطريق دفع خود را بيان نکند .

**ب**: دفع خود را بيان کند ولی بگويد که شهود دفع من در شهر حضور ندارند .

**ج**: دفع فاسد غير قابل سمع را بيان کند . (۳)

**مادهٔ ۱۶۵:**

اگر مدعی عليه چنان دفع نمايدکه =

---

(۱) : شرح المادة (۱۸۴۰) الاتاسي جـ (۶) صـ (۱۶۷) .

(۲) : مجمع الأنهر جـ (۲) صـ (۲۷۰) . والبحر جـ (۷) صـ (۲۲۸) .

(۳) : الاشباه والنظائر صـ (۱۹۰) .

= شرع یا عقل یا ظاهر الحال یي ونه مني قاضي کولای شي چې هغه دفع وانه وري (۱)

**۱۶۶ ـ ماده :**

قاضي کولای شي هغه دعوی چې پوهیږي چې حقیقت نه لري اودهغه په نه حقیقت باندي شرعي دلائل ولري وا نه وري . (۲)

**۱۶۷ ـ ماده :**

که مدعي علیه ووایي چې مدعی به ځما په لاس کــې دفلاني غائب شخص امانت یا عاریت دی چې ماته ئي په اجاره راکړی یا ځما په لاس کې د ګروی په ډول دی ، یا مي له هغه څخه غصب کړی دی او پرهغه باندي شاهدان تـــېر کړي او شاهدان هم په خپل شهادت کې غائب شخص په نوم او نسب معـرفـي کړي، دا دفع داوریدو وړده . (۳) .

**۱۶۸ ـ ماده :**

ددفع دعوی لکه د نورو دعوو په شان شرعي شرائطوته ضرورت لري . (۴)

**۱۶۹ . ماده :**

ددعوی دفع دغیر مدعي علیه له خوا د اوریدو وړ نه ده . (۵)

شرع یا عقل یا ظاهر الحال تکذیب اورا کند قاضی میتواند که آن دفع نشنود (۱)

**مادۀ ۱۶۶:**

قاضی میتواند دعاوی را که میفهمد که حقیقت ندارد وبـــرعدم حقیقت آن دلائل شرعی داشته باشد نشنود . (۲)

**مادۀ ۱۶۷:**

اگر مدعی علیه بگوید که مدعی به در دست من امانت ، یا عاریت فــلان شخص غائب است ، که به من اجاره داده یا بدست من بطور رهن است ، یا ازو غصب نموده ام وبرآن اقامه شهود کند وشهود نیز در شهادت خود شخص غائب را باسم ونسب معرفی کنند دفع مذکور قابل سمع است . (۳)

**مادۀ ۱۶۸:**

دعوای دفع مانـــند دیگر دعاوی بشرائط شرعی ضرورت دارد . (۴)

**مادۀ ۱۶۹:**

دفع دعوی از جانب غیر مدعی علیه قابل سمع نیست . (۵)

(۱) :الْمَادَّةُ (۱۶۲۹) دررالحکام جــ (٤) صـــ (۲۰۸) .الکاملیة صـــ (۱۱۷) .

(۲) : شرح المادة (۱۸۲۹) والاتاسي جــ (۶) صـــ (۱۳۳) .الکاملیة صـــ (۱۰۶) .

(۳) : شرح المادة (۱۶۳۰) الاتاسي جــ (۵) صـــ (۵۹) .

(۴):الهندیة جــ (۴) صـــ (۳) . شرح المادة (۱۶۱۳) الاتاسي جــ ۵ صـــ (۴) .

(۵) : شرح المادة (۱٦۳۱) دررالحکام جــ (٤) صـــ (۲۱۲) . الاتاسي جــ (۵) صـــ (۵۶) . غمزعیون البصائر المادة (۱۳۹۰) جــ (۲) صـــ (۲۰۵) .

**تبصره** : که يوتن له وارثانو څخه مدعي عليه وي اوبل وارث دمدعي دفع وکـــړي مجاز دی دا وارث غير مدعي عليه يا دريم شخص نه بلل کيږي . (۱)

**۱۷۰ـ ماده** :

دمدعي عليه لخوا ددعوی دفع دمدعي دشهودو تعديل نه بلل کيږي . (۲)

**۱۷۱ـ ماده** :

ددعوی دفع پخوا له حکمه يا وروسته له حکمه اوپخوا له شهادته او وروسته له شهادته او وريدل کيدای شي . (۳)

**۱۷۲ـ ماده** :

که مدعي عليه ووايي چې مدعی به يي له غايب شخص څخه پيرودلی دی يا غائب شخص دته وربخښلی دی ، يا مدعي پرمدعي عليه دغصب يا غـــلا دعوی وکړي اومدعي عليه ووايي چې په امانت يا عاريت ډول يي اخيستی دی دمدعي ددعوی دفع کيدای نشي . (۴)

**۱۷۳ـ ماده** :

که مدعي عليه په صحيح صورت دفع وکړي نو قاضي د شاهدانو تېرولو په غـرض په لازمـه اندازه مهلت ورکولای شی . (۵)

**تبصره**: اگر يکنفر از ورثه مدعی عليه باشد ووارث ديگر دعوای مدعی را دفع کند مجاز است اين وارث غير مدعی عليه يا شخص ثالث شناخته نميشود .(۱)

**مادۀ ۱۷۰**:

دفع دعوی از جانب مدعی عليه تعديل شهود مدعی گفته نميشود . (۲)

**مادۀ ۱۷۱**:

دفع دعوی قبل از حکم وبعد ازحکم وقبل از شـــهادت و بعد از شـــهادت مسموع شده ميتواند . (۳)

**مادۀ ۱۷۲**:

اگر مدعی عليه بگويد که مدعی به را زا شخص غائب خريده است ويا شخص غائب آنرا بوی هبه نموده است يا مدعی برمدعی عليه ادعای غصب يا سرقه کند ومدعی عليه بگويد که آنرا طور امانت يا عاريت گرفته است دعوی مدعی دفع شده نميتواند .(۴)

**مادۀ ۱۷۳**:

اگر مدعی عليه بصورت صحيح دفع کند قاضی بغرض اقامه شهود باندازه لازمه مهلت داده ميتواند . (۵)

(۱) : شرح المادة ( ۱۶۳۱) دررالحكام جـ (۴) صـ (۲۱۲) . بحرالرايق جـ (۷) صـ (۲۳۱) الاتاسي جـ (۵) صـ (۵٦)

(۲) : شرح المادة (۱٦۳۱) دررالحكام جـ (٤) صـ (۲۱۸) .

(۳) : الاشباه والنظائر صـ (۱۹۰) . شرح المادة (۱۸۴۰) الاتاسي صـ (۱۶۷).

(۴) : مجمع الانهرجـ ۲ صـ (۲۷۱) .

(۵) : شرح المادة (۱٦۳۱) دررالحكام جـ (٤) صـ (۲۱۲) . الاشباه والنظائر ص (۱۹۰) . الفتاوي الكاملية صـ (۱۰۷) .

# تناقض

**۱۷۴ ـ ماده :**
تناقض هغه دوه خبري دي چې يوه يي دبلي نقيضه وي او له مدعي يا مدعي عليه څخه د قضا په مجلس کې دقاضي په حضورکې ظاهره شي اوهغه ددعوی د صحت مانع ده . (۱)

**۱۷۵ ـ ماده :**
لکه څرنګه چې تناقض پخپله د شخص دپاره ددعوی د صحت مانع دی دبل د پاره هم په هغې موضوع کې وکالتًا او وصايتًا دعوی کولای نشي . (۲)

**۱۷۶ ـ ماده :**
لکه څرنګه چې يوحق له دوو تنو څخه متعاقبًا نه اخيستلی کيږي يو حق له يوه جهته له دوو تنو سره متعاقبًا دعوی کيدای نشي . (۳)

**مادۀ ۱۷۴:**
تناقض آن دو کلام است که یکی نقیض دیگری باشد و از مدعی یا مدعی علیه در مجلس قضاء بحضور قاضی ظاهر شود وآن مانع صحت دعوی است . (۱)

**مادۀ ۱۷۵:**
چنانکه تناقض مانع صحت دعوی برای خود شخص است برای دیگری نیز درآن موضوع وکالتًا ووصایتًا دعوی کرده نمیتواند . (۲)

**مادۀ ۱۷۶**
چنانکه یک حق از (دو) نفر متعاقبًا گرفته نمیشودیک حق ازیک جهت بادو نفر متعاقبًا دعوی شده نمیتواند . (۳)

(۱): الْمَادَّةُ ( ١٦١٥ ) و ( ١٦٤٧ ) مجلة الاحكام .
(۲) : الْمَادَّةُ ( ١٦٤٨ ) مجلة الاحكام .
(۳) : الْمَادَّةُ ( ١٦٥١ ) مجلة الاحكام.

**۱۷۷ ـ ماده :**
لکه څرنګه چې تناقض له یو متکلم څخه ددعوی مانع دی ، له دوو تنو متکلمانو څخه چې حکمًا یومتکلم وبلل شي هم ددعوی مانع دی، لکه وارث او مورث وکیل او موکل ، وصي او موصي . (۱)

**۱۷۸ ـ ماده :**
هر هغه شی چې دمورث ددعوی مانع کیدای شي ، هغه د وارث ددعوی مانع هم دی . (۲)

**۱۷۹ ـ ماده :**
تناقض د خفا په محل کې عفوه ده . (۳)

**تبصره** : پور وړی خپل پـــور، پوروال ته رســـوي وروسته له هغه شرعي او اصولي رسید یي په لاس راوړي دا ډول تناقض عفوه دی . (۴)

**۱۸۰ ـ ماده :**
که کوم شخص د بل پر ذمه دپور دعوی وکړي او مدعي علیه ووایي چې ځما پر ذمه کوم شی نلري، څرنګه چې مدعي شاهدان اقامه کړي کړي مدعي علیه ځوابًا له ابرآء یا دهغه له رسېدلو څخه اظهار وکـړي دمدعي علیه دوهم قول تناقض نه دی . (۵)

**مادۀ ۱۷۷**:
چنانکه تناقض از یک متکلم مانع دعوی است از دو نفر متکلم که حکمًا یک متکلم گفته شوند نیز مانع دعوی میباشد مانند وارث و مورث ، وکیل و موکل،وصی و موصی . (۱)

**مادۀ ۱۷۸**:
هر چیزی که مانع دعوی مورث شده بتواند مانع دعوی وارث است . (۲)

**مادۀ ۱۷۹**:
تناقض درمحل خفاء عفوه است . (۳)

**تبصره**: مدیون دین خود رابدائن میرساند پس ازآن رسید شرعی و اصولی آن را می یابد این گونه تناقض عفوه است . (۴)

**مادۀ ۱۸۰**:
اگر شخصی برذمه دیگری دعوی دین کند ومدعی علیه بگوید بـــر ذمه مـــن چیزی ندارد چون مدعی اقامه شهود کند مدعی علیه جوابًا از ابرآء ویا رسانیدن آن اظهار نماید قول دوم مدعــــی علیه تناقض نیست . (۵)

(۱) : الْمَادَّةُ (١٦٥٢) مجلة الاحكام .
(۲) : الفتاوي الكاملية صـــ (١١٩) . الاتاسي جـــ (٥) صـــ (١٣٨)
(۳) : الْمَادَّةُ (١٦٥٥) مجلة الاحكام .
(۴) : شرح الْمَادَّةُ (١٦٥٥) للرستم باز جـــ (٢) صـــ (٧٥٧)
(۵) : الْمَادَّةُ (١٦٥٧) مجلة الاحكام . الاتاسي جـــ (٥) صـــ (١٥١) .

**١٨١ ـ ماده :**

که کوم شخص پر بل باندي دقصاص قتل دعوی وکړي اومدعي علیه ځوابًا انکار وکړي که مدعي شاهدان تیروي او مدعي علیه وروسته له دي دعــوی دعفوه یا ابــرآء کــوي تناقض نه بلل کیږي . (١)

**١٨٢ ـ ماده :**

که کوم شخص د بلچا په مال اقرار وکړي اوحاکم ( قاضي ) دهغه په تسلیم مدعي علیه ته امر ورکړي وروسته له هغه دا مدعي علیه اظهار وکړي چې دا مال مي ورڅخه پیرودلی دی دوهم قول څنګه چې تنا قض دی ، نو داوریدو وړ نه دی . (٢)

*****
***
*

**مادهٔ ١٨١:**

اگــر شخصــی بــرعلیه دیگــری دعوی قتل قصاصی نماید ، مدعــی علیه جوابًا انکار کند اگر مدعی اقامه شهود مینماید ومدعــی علیه پس از دعوی عفوه یا ابرآء مینماید تناقض نمیشود . (١)

**مادهٔ ١٨٢:**

اگر شخصی بمال کسی اقرار کند وحاکم ( قاضی ) به تسلیم آن برای مدعی علیه امر بدهد پس ازآن مدعی علیه مذکور اظهار کند که مال مذکور را از نزدش خریداری نموده ام قول دوم چون تناقض است قابل سمع نیست . (٢)

*****
***
*

(١) : الْمَادَّةُ (١٦٥٧) مجلة الاحكام .

(٢) : شرح المادة (١٦٣٠) دررالحكام , جـ (٤) صـ (٢١٠) .

| درې واړه محکمې | محاكم سه گانه |
|---|---|
| **۱۸۳ ـ ماده :**<br>افغانستان نظر اسلامي اصولو ته چې قضا دتخصیص،تقیید او تجزئي قابلیت په محل، زمانه ،حادثه او موضوع پورې لري دحقوقي اوجزائي دعوو د حل او فصل دپاره ئـي درې مرجع گاني تشکیل کړې دي ابتدائیه محکمه ، مرافعه محکمه ، دتمیز ریاست . (۱) | **مادۀ ۱۸۳:**<br>افغانستان نظر باصول اسلامی که قضاء قابلیت تخصیص وتقید وتجزیه را به محل ، زمان ، حادثه ، وموضوع دارد سـه مرجع را برای حل وفصل دعاوی حقوقی وجزائی تشکیل داده است محکمه ابتدائیه محکمه مرافعه و ریاست تمیز . (۱) |
| **لومړی ـ : ابتدائیه محکمه** | **اول ـ : محکمهٔ ابتدائیه** |
| **۱۸۴ ـ ماده :**<br>ابتدائیه محکمه حقوقي او جزائي دعوی که لیږ وي اوکه زیاتي په خپل حضور کې فیصله کولای شي . (۲)<br>**۱۸۵ ـ ماده :**<br>ابتدائیه محکمه لکه ځرنګه چې حقوقي فقـــرې له مقرراتو او دمحاکمو د اداري اصولنامې او د دعوو له اوریدو له اصولو سره سمـــي حل او فصل کوي جزائي فقرې هم له شرعـــي او اصولـــي مقـــرراتو سره سمـــي فیصله کوي . (۳) | **مادۀ ۱۸۴:**<br>محکمه ابتدائیه دعاوی حقوقی وجزائی را کم باشد یا زیاده بحضور خود فیصله کرده میتواند . (۲)<br>**مادۀ ۱۸۵:**<br>محکمه ابتدائیه چنانکه فقرات حقوقی راحسب مقررات وطبق اصولنامه اداری محاکم واصول استماع دعاوی حل وفصل مینماید ، فقرات جزائی را نـیز حسب مقررات شرعی واصولی فیصله مینماید . (۳) |

(۱) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ (۱۸۰۰) و (۱۸۰۱) مِنْ الْمَجَلَّةِ الْأَحْكَامِ .
(۲) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ (۱۸۰۰) و (۱۸۰۱) مِنْ الْمَجَلَّةِ الْأَحْكَامِ .
(۳) : الْمَادَّةِ (۱۸۰۰) و (۱۸۰۱) مَجَلَّةِ الْأَحْكَامِ .

**١٨٦ ـ ماده :**
ابتدائيه محكمه له مقرراتو سره سم د حق العبدي ، حق الله ، او تعزيري جزاؤ دټاكلو واک لري . (١)

**١٨٧ ـ ماده :**
حقوقي دعوى له صلاحيت لرونكو مقاماتو يا له ادعانامې سره سمې دابتدائي محكمې حضورته وړاندې كيږي . (٢)

**١٨٨ ـ ماده :**
ابتدائيه محكمه حقوقي اوجزائي فقرې بې له مدعي اومدعي عليه نشي قبلولای . (٣)

**١٨٩ ـ ماده :**
كه مدعي بې له شرعي عذره دعوى پريږدي ابتدائيه محكمه هغه دخصومت پرېښودل بولي . (٤)

**١٩٠ ـ ماده :**
كه په حقوقي فقروكې له اشخاصو يا له امارتي شعباتو پوښتنې ته ضرورت ولري دهغو دمرجع په ذريعه ئي پوښتلی شي . (٥)

**مادۀ ١٨٦:**
محكمه ابتدائيه بر حسب مقررات صلاحيت تعيين جزائی تعزيری حق العبدی وحق الله را دارد . (١)

**مادۀ ١٨٧:**
دعاوی حقوقی از مقامات صلاحيت دار يا طبق ادعا نامه بحضور محكمه ابتدائيه تقديم ميگردد . (٢)

**مادۀ ١٨٨:**
محكمه ابتدائيه فقرات حقوقی يا جزائی را بدون مدعی ومدعی عليه پذيرفته نميشود . (٣)

**مادۀ ١٨٩:**
اگر مدعی دعوی را بی عذر شرعی ترک كند محكمه ابتدائيه آنرا ترک خصومت ميداند . (٤)

**مادۀ ١٩٠:**
اگر درفقرات حقوقی بسوال از اشخاص يا شعبات امارتی ضرورت داشته باشد ذريعه مرجعش پرسيده ميتواند . (٥)

(١) : الْمَادَّةِ (١٨٠٠) و (١٨٠١) مَجَلَّةِ الْأَحْكَامِ .
(٢) : الْمَادَّةِ (١٨٠٠) و (١٨٠١) مَجَلَّةِ الْأَحْكَامِ .
(٣) : الْمَادَّةُ (١٨٣٠) و( ١٦١٨ ) مجلة الاحكام .
(٤) : التاتارالخانية جـ (١٣) صـ (٦).معين الحكام صـ (٦١).الكاملية صـ (١١٤).
(٥) : الْمَادَّةِ (١٧١٧) و (١٨٠١) مجلة الاحكام .

**۱۹۱ ـ ماده :**
ابتدائیه محکمه په حقوقي اوجزائي فقرکې که کوموکسانوته ضرورت ولري دمربوطي مرجع په ذریعه هغوی را غوښتلای شي . (۱)

**مادهٔ ۱۹۱:**
محکمه ابتدائیه در فقرات حقوقی وجزائی اگر بکدام اشخاص ضرورت داشته باشد ذریعه مرجع مربوط آنها راخواسته میتواند (۱)

## دوهمه مرافعه محکمه

## دوم ـ محکمه مرافعه

**۱۹۲ ـ ماده :**
استیناف هغه شکایت یا استغاثه ده چې دیوې حاکمې محکمې له خلاف رفتاری، نه یوې لوړې محکمې (مرافعې) ته وړاندې کیږي . (۲)

**۱۹۳ ـ ماده :**
دا شکایت په دوه قسمه دی :
**الف ـ** عادي شکایت .
**ب ـ** غیر عادي شکایت .
په عادي شکایت کې دمحکمې حکم د شرع له اصول او قانون څخه خلاف معلومیږي . په غیرعادي شکایت کې یوازې دمحکوم علیه شکایت له اصول اوشرع نه له مخالفت څخه په نظرکې نه نیول کیږي بلکې نور اسبابونه به په نظر کې ونیول شي . (۳)

**مادهٔ ۱۹۲:**
استیناف آن شکایت یا استغاثه است که از خلاف رفتاری یک محکمه حاکمه به یک محکمه بالاتر (محکمه مرافعه) تقدیم میگردد . (۲)

**مادهٔ ۱۹۳:**
شکایت مذکور دو قسم است :
**الف ـ** شکایت عادی .
**ب ـ** شکایت غیر عادی.
در شکایت عادی حکم محکمه خلاف اصول وقانون شرع وا نموده میگردد .
در شکایت غیر عادی تنها شکایت محکوم علیه از مخالفت اصول وشرع در نظر گرفته نمیشود بلکی اسباب دیگری در نظر گرفته خواهد شد . (۳)

---

(۱) : شرح المادة (۱۸۳۳) الاتاسي جـ (٦) صـ (۱۵۱) وددرالحکام جـ (٤) صـ (٦٧٦) والمادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام. (۲) : الْمَادَّةُ (۱۸۳۸) مَجَلَّةِ الْأَحْكَامِ .
(۳) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۸ ) للاتاسي جـ (٦) صـ (۱٦۵) .

**تبصره** : نور اسبابونه لکه رشوت خوړل ، فسق، فجور اونوردي چې پر فیصله پوري اړه نه لري . (۱)

**۱۹۴ـ ماده** :

د استیناف اساسي شروط :

**الف** ـ د مرافعې د قانوني اوریدني په میعاد کې دي داخل وي . (۲)

**ب** ـ د ابتدائیې فیصله دي د حکم صفت ولري . (۳)

**ج** : محکوم علیه دابتدائیې پر فیصله باندي صریحایا دلالة خپل رضائیت نه وي ښکاره کړی. (۴)

**د** ـ د مرافعې محکمه دي دهغه د استیناف صلاحیت ولري . (۵)

**هـ** ـ متداعینو دي د ځانګړي سند په موجب او دطرفینو په تراضي د خپلي مرافعې استحقاق نه وي ساقط کړی.(۶)

**و** ـ دواړو خواوو دځانګړي سند له قراره دحَکَمْ شخص په قاطع حَکَمیَت رضائیت نه وي ورکړی . (۷)

**تبصره**: اسباب دیگری مانند رشوت خوری وفسق وفجور وغیره است که به فیصله ارتباطی نداشته باشد . (۱)

**مادۀ ۱۹۴** :

شروط اساسی استیناف :

**الف** ـ داخل میعاد استماع قانونی مرافعه باشد . (۲)

**ب** ـ فیصله ابتدائیه دا رای صفت حکم باشد . (۳)

**ج** ـ محکوم علیه صریحا یا دلالتًا به فیصله ابتدائیه رضائیت خود را ظاهر نکرده باشد . (۴)

**د** ـ محکمه مرافعه صلاحیت استیناف آنرا داشته باشد . (۵)

**هـ** ـ متداعین بموجب سند علی حده وتراضی طرفین استحقاق مرافعه خود را ساقط نکرده باشد . (۶)

**و** ـ جانبین قرار سند جداگانه به حکمیت قاطع شخص حکم رضائیت نداده باشد . (۷)

(۱) : شرح المادة (١٧٩٦) دررالحكام جـ (٤) صـ (٥٩٠).
(۲) : شرح الْمَادَّةُ (۱۸۳۹) دررالحكام جـ (۴) صـ (۶۹۱).
(۳) : الْمَادَّةُ (۱۷۸٦) مجلة الاحكام .
(۴): المادة (۷۹) . من مجلة الاحكام .وشرح المادة (۱۸۳۵) دررالحكام جـ (٤) (٦٨١) .
(۵): الْمَادَّةُ (۱۸۰۰) (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .
(٦) : الْمَادَّةُ (٦٩) و(۷۹) و(١٦٠٦) مجلة الاحكام .
(۷) : الْمَادَّةُ (٦٩) و(۷۹) و(١٦٠٦) مجلة الاحكام .

**ز** - لازمه ده چـــي استيناف دمدعـــي يا مدعـــى عليه يا د دوى د قائم مقام له خوا وشي، عبارت پخپله له دوى او يا ددوى له ورثې، وصيانو او وكيلانو څخه دى . (١)

**ك** ـ دابتدائيې محكمې حكم دمحكوم عليه په قناعت نه وي اجراء شوى .(٢)

**١٩٥ ـ ماده :**

څرنګه چې مرافعه غوښتنه بې دعرض حال له وړاندي كولو كيداى نشي او هغه هم لازم ده چې په قانوني ميعادكې وي نودهغه د وړاندي كيدو نيټه ډيراهميت لري او په هغه كې دا لاندي مراتب په نظركې ونيول شي (٣)

**الف**:استيناف بې دهغه شخص له عرض نه چې دا استيناف حق لري معتبرنه دى (٤)

**ب** : ـ لازم دى چـــې عرض حال يا د استيناف پاڼه اصولا دمـــــرافعـــې محكمې ته وړاندي شي .(٥)

**ج** : لازم دى چې عرض حال د مرافعـــې غوښتني په مرافعه كې په رسمي صورت وي يعني دمرافعې په دفتركې قيد اود محكمې د دفترلمبريې اخيستي وي .(٦)

**ز** - لازم اســت كه اســتيناف ازجانب مدعى يا مدعى عليه ويا قــائم مقام آنــها شود وآن عبارت است ازخود شان ويا ورثه واوصيآء ووكلاى شان. (١)

**ك** = حكم محكمه ابتدائيه به رضاء محكوم عليه اجرآء نشده باشد . (٢)

**مادۀ ١٩٥ :**

چون مرافعه طلبى بدون تقديم عرض حال صورت گرفته نميتواند وآنهم لازم است كه در ميعاد قانونــى باشد پــس تاريخ تقديم آن بيـــشتر اهميت دارد ، ودرآن مراتب آتى در نظرگرفته خواهد شد (٣)

**الف** ـ استيناف بدون عرض شخصى كه حق استيناف دارد معتبر نيست . (۴)

**ب** ـ لازم است كه عـرض حال يا ورقه استيناف اصولا بمحكمه مرافعه تقديم گردد .(۵)

**ج** -لازم است كه عــــرض حال مرافعه خواهى درمرافعه بصورت رسمى باشد يعنـــى در دفتر مرافعه قيد ونمره دفتر محكمه را گرفته باشد . (۶)

---

(١) : الاتاسي جـ (٦) صـ (٩١) .

(٢) : الْمَادَّةُ (١٨٠١) مَجَلَّةِ الْأَحْكَام .

(٣) : الْمَادَّةُ (١٨٠١) مَجَلَّةِ الْأَحْكَامِ . شرح الْمَادَّةُ (١٨٣٩) درالحكام جـ (٤) صـ (۶٩١) .

(۴) : الاتاسي جـ (٦) صـ (٩١) .

(۵) : الْمَادَّةِ (١٨٠١) مَجَلَّةِ .

(۶) الْمَادَّةُ (١٨١٤) مجلة الاحكام الْمَادَّةِ (١٨٠١) مَجَلَّةِ .

**١٩٦ـ ماده :**

لازم دی چې د استيناف په پاڼه کې برسيره د مرافعه غوښتونکي او دهغه د مقابل جانب په تعرفه دحکم صورت او دمحکمې نوم اوهغه نيټه چې حکم پر مرافعه غوښتونکي ابلاغ شو د مدعی به ، کم او کيف توضيح شي .(١)

**١٩٧ـ ماده :**

لازم دی چې مرافعه غوښتونکی داستيناف سبب اوشکايت واضح کړي. (٢)

**١٩٨ـ ماده :**

لازم دی چې مرافعه غوښتونکی داستيناف دپاڼې له وړاندي کولونه وروسته دخپلو مفصلو اعتراضاتو پاڼه سره له خپلو دلائلو او اسنادو دلسو ورځو په موده کې مرافعې محکمې ته وړاندي کړي ترڅو دمحکمې له تصديق او قبول نه وروسته مقابل جانب ئي په ټاکلې ورځ وغوښتل شی . (٣)

**تبصره :**

د پورتنۍ مادې د لزوم څخه اضطراري حالات مستثنی دي .

**مادۀ ١٩٦ :**

لازم است که در ورقه استيناف علاوه بر تعرفه مرافعه خواه وجانب مقابل او صورت حکم ونام محکمه و تاريخيکه حکم بمرافعه خواه ابلاغ شده وکم وکيف مدعی به توضيح شود . (١)

**مادۀ ١٩٧ :**

لازم است که مرافعه خواه سبب استيناف وشکايت را واضح بسازد . (٢)

**مادۀ ١٩٨ :**

لازم است که مرافعه خواه بعد از تقديم ورقه استيناف ، ورقه اعتراضات مفصل خود را با دلائل واسناد خود در ظرف (ده روز) تقديم محکمه مرافعه نمايد ، تا بعد ازتصديق وقبول محکمه بروز معين جانب مقابل آن جلب گردد . (٣)

**تبصره:**

حالات اضطراری ازحکم ماده فوق مستثنی است .

(١) : المادة (١٥٠٠) حموي جـ (٢) صـ (٢٧٧) . شرح المادة (١٨١٤) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٢١) .

(٢) : الْمَادَّةُ ( ١٨٣٨ ) مَجَلَّةِ الاحكام .

(٣): الْمَادَّةِ (١٨٠١) و(١٨٣٨) مَجَلَّةِ الاحكام . والفتاوي الكاملية صـ (١١٧) .

**۱۹۹ ـ ماده :**

که مرافعه غوښتونکی دا پورتني مواد په اداري اصول نامه کې رعايت نکړي او دمرافعې د دعوو د اوريدو موده تيره شي ، د شکايت حق نه لري ، د ابتدائيې فيصله قطعيت مومي . (۱)

**۲۰۰ ـ ماده :**

که پورتني مواد رعايت کړي مګر وروسته له هغه د اوريدو دمودې په اندازه بې دقضيې له شرعي اواصولي عذره حاضر نشي فيصله قطعيت مومـــي اوپه را تلونکي کې د شکايت حق نه لري . (۲)

**۲۰۱ ـ ماده :**

د مـرافعـې غوښتنـي د پاڼي له وړاندي کـېدو څخه وروسـته يخـپله مـرافعه غوښتونکی اومقابل جانب يي بايد په ټاکلې ورځ په محکمه کې حاضر وي او که هريوله دوی څخه ددې په خلاف رفتار وکړي مرافعه محکمه د مقابل جانب د درخواست په موجب کولای شي چـې خپله نظـريه څـرګـنده کـړي او دعدلـي محکموداداري اصولنامې (۱۲۲) مادې سره سم رفتارورسره کيږي . (۳)

**مادۀ ۱۹۹ :**

اگـر مـرافــعه خـواه مــواد فــوق واصولـنامـه اداری را رعـايت نکـند ومدت استماع دعاوی مرافعه منقضی شود حق شکايت ندارد فيصله قطعيت می يابد . (۱)

**مادۀ ۲۰۰ :**

اگر موادفوق را رعايت کندولی بعدازآن باندازه مدت استماع بغرض فيصله بدون عذرشرعی واصولی قضيه حاضر نگردد فيصله قطعيت می يابد ، ودر آئنده حق شکايت ندارد . (۲)

**مادۀ ۲۰۱ :**

بعد از تقـديم ورقه مرافعه خواهی هر يک از مرافعه خواه وجانب مقابلـش بروز مـتعينه بمحکمه مرافعه حاضـر باشند واگر يکی از آنها برخلاف مذکور رفــتار نمودند محکمه مرافعه بموجب درخواست جانب مقابل ميتواند نظريه خـــود را ابــراز دارد ومــطابق ماده ( ۱۲۲) اصولنامه اداری محاکم عدلی همرايش رفتار ميشود . (۳)

---

(۱) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۹ ) دررالحکام جــ (٤) صـــ (٦۹۱) .والْمَادَّةِ (۱۸۰۱) مَجَلَّةِ الاحکام.

(۲) : الْمَادَّةِ (۱۸۰۱) مَجَلَّةِ الاحکام .وشرح الْمَادَّةُ (۱۸۳۹) دررالحکام جــ (٤) صـــ (٦۹۱) .

(۳) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ (۱۸۰۱) مَجَلَّةِ الاحکام .

**۲۰۲ ـ ماده :**

لازم دی چې مرفوعه حکم په شرعي حادثه اوصحیحه خصومت کـې صادر شــي ،کنه دا حکم شرعــي حکم نه بلل کیږي بلکي افتاء بلله کیږي او ددوهم قاضي ( دمرافعې قاضي ) په لاس لیک کې چې د لومړي قاضي حکم لاسلیک کوي هم دشرعي دعوی مذاکرې ته ضرورت لري او هغه دعوی او خصومت د مذهب دعالمانو په نزد حادثه بلله کیږي . (۱)

**تبصره :**

د نورو قاضیانو قضیې که مرافعې ته رسیږي د صحیحه دعوی د وجود په صورت او دهغې جریان په شرعي ډول دهغې په اجراء حکم کیږي اوهغې ته دمذهب په اصطلاح شرعي تنفیذ وایي اوکنه که یوازي دلومړي قاضي د حکم دڅرنګوالي محتویات په نظرکي وي او د تسلیم په ډول اجرا آت شوي وي هغه قضایي اتصال بولي . (۲)

**۲۰۳ ـ ماده :**

که مرافعه محکمه د خپل صلاحیت د اجراء له وخت نه پخوا ( ابتدائیــې له حکم نه پخوا ) په کومه موضوع کې اقدامات اوتشبث وکړي =

**مادهٔ ۲۰۲ :**

لازم است که حکم مرفوعه در حادثه شرعی وخصومت صحیحه صادر شود والا حکم مذکور حکم شرعی شمرده نمیشود بلکی افتاء نامیده میشود ، ودر امضاء قاضی ثانی ( قاضی مرافعه) که حکم قاضی اول را امضاء مینماید نیز بمذاکره دعوی شرعی ضرورت دارد وآن دعوی وخصومت نزد علماء مذهب حادثه نامیده میشود . (۱)

**تبصره:**

قضایای قـضات دیگر اگر بمرافعه میرسد بصورت وجود دعوی صحیحه وجریان آن طور شرعی باجرای آن حکم میـشود وآنرا باصطلاح مذهب تـنفیذ شرعی میگویند والا اگر تنها محتویات چگونگی حکم قاضی اول درنظر بوده وطور تـسلیم اجراآت شـده باشد آنرا اتصال قضائی میخوانند . (۲)

**مادهٔ ۲۰۳ :**

اگر محکمه مرافعه قبل از وقت اجرای صلاحیت خود ( قبل ازحکم ابتدائیه) درکـدام موضوعی اقدامات وتـشبث نـماید نزد تمیز اعتباری =

(۱): الفتاوي الكاملية صـــ (۱۰۷ و ۱۱۳) .

(۲) : شرح المادة (۱۸۳۸) دررالحكام جــ (٤) صـــ (٦٨٦) .

=د تمیز په نـــزد اعتبار نلري بلکـــي دماتېدو وړدي . (۱)

**تبصره** :
په فعلي شرائطو کې د هري مرافعې په څنګ کې يوه عامه ابتدائيه لازمي ده چې د ضرورت په وخت کې په اصولي توګه د ابتدائيې مراحل تر اجرآء لاندي ونيسي . (۲)

**۲۰۴ـ ماده** :
لکه څرنګه چې ابتدائيه محکمه هغه شی قيدوي چې مدعي پخپله دعوی کې راوړي دي مرافعه محکمه به هم هماغه ادعا فيصله کړي چې مدعي په خپله دعوی کې ذکر کړې ده او دهغې ادعايي کړې ده . (۳)

**۲۰۵ ــ ماده** :
که مدعي يا مدعي عليه په ابتدائيه کې د ادعا يا مدافعې په ډول کوم شی مجمل يا مطلق ويلي وي په مرافعه کې کولای شي چې هغې ته شرعا تفصيل يا تقييد ورکـــړي مرافعه مـــحکمه به هـغه له موضوع څخه د باندي نه بولي . (٤)

= ندارد بلکی قابل نـقض است . (۱)

**تبصره**:
نظر به شرائط فعلی در پهلوئی هرمرافعه یک محکمه ابتدائیه عام لازم است که در وقت ضرورت بـطور اصولی مراحل ابتدائی را اجرأ نماید . (۲)

**مادۀ ۲۰۴** :
چنانکه محکمه ابتدائیه آن چیز را قید میکند که مدعی در دعوی خود آورده محکمه مرافعه نیز همان ادعا را فیصله خواهد کرد که مدعی در دعوی خود ذکر کرده ، وآنرا ادعا نموده است . (۳)

**مادۀ ۲۰۵** :
اگر مدعی یا مدعی علیه در ابـــتدائیه طور ادعا یا مدافعه چـــیزی مجمل یا مطلق گفته باشند درمرافعه میتوا نند آنرا شرعًا تفصیل ویا تقیید بدهند ، محاکم مـــرافعه آنـــرا خارج موضوع نمیداند . (٤)

(۱) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ (۱۸۰۱) مِنْ الْمَجَلَّةِ .
(۲) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ (۱۸۰۱) مِنْ الْمَجَلَّةِ .
(۳) : الْمَادَّةُ (۱۸٤۰) مجلة الاحكام . والْمَادَّةُ (۱۸۳۸) مجلة الاحكام .
(۴) : شرح المادة (۱۸٤۰) للاتاسي جــ (٦) صــ (١٦٧) . قاضي خان علي هامش الهندية جــ (٢) صــ (٣٩٧) .

**۲۰۶ ـ ماده :**
هغه څوک چې دده دعوی په ابتدائیه محکمه کې پخپله دده، یا دوکیل، ولي ، وصي، قیم په ذریعه فیصله کیدای شي نو دده د استیناف حق هم دپورتنیو اشخاصو په ذریعه داوریدو وړدی . (۱)

**۲۰۷ ـ ماده :**
که محکوم علیه چې محکوم په دین وي دهغه په ورکړه کې له محکوم له څخه مهلت غوښتی وي او له اصلي موضوع څخه مرافعه ونه غواړي ضمنًا د ابتدائیې محکمې په حکم قناعت دی . (۲)

**۲۰۸ ـ ماده :**
لازم دی چې ( مرافعه غوښتونکی ) حقوقي اهلیت ولري له دې کبله کوچنی ، لیونی ، معتوه او د دوی په شان د استیناف له حق څخه استفاده نشي کولای . (۳)

**مادۀ ۲۰۶ :**
کسیکه دعوی او در محکمه ابتدائیه ذریعه خود او ویا وکیل ، ولی ، وصی ، قیم اوفیصله شده میتواند حق استیناف اونیز ذریعه اشخاص فوق قابل سمع است . (۱)

**مادۀ ۲۰۷ :**
اگر محکوم علیه ، که محکوم بدین باشد و در تادیه آن از محکوم له مهلتی خواسته باشد واز اصل موضوع مرافعه نخواهد ضمنًا بحکم محکمه ابتدائیه قناعت است . (۲)

**مادۀ ۲۰۸ :**
لازم است ( مرافعه خواه ) اهلیت حقوقی داشته باشد ازآن رو طفل ، مجنون ، معتوه وامثال آن از حق استیناف استفاده کرده نمیتوانند . (۳)

(۱) : شرح الْمَادَّةُ (۱۸۱٦) دررالحکام جـ (٤) صـ (٦۲٤) .
(۲) : الفتاوي الهندية جـ (۴) صـ (۱۵۸) .
(۳) : الْمَادَّةُ (۱٦۱٦) مجلة الاحكام .الفتاوى الهندية جـ (٤)صـ (۲).

**۲۰۹ ـ ماده :**

د صغير، ليوني، معتوه يا ددوی د ولي ، وصي ، وكيل ، قيم ، صريح يا ضمني رضائيت اعتبار نلري اوهغه څوک چې دخپل موكل دقناعت واک ولري له پورتنۍ مادې څخه مستثنی دی . (۱)

**۲۱۰ ـ ماده :**

كه د استيناف په وخت کې يو له متخاصمينو څخه هغه د استيناف وړنه بولي ، نو لازم ده چې مرافعه محكمه لومړی د هغه د استيناف دحق لرل اونه لرل تثبيت كړي وروسته له هغه په اصله موضوع کې په اقداماتوكې داخل شي اوكنه تميز كولای شي چې نظر د اصول نه رعايت ته دا حكم مات كړي . (۲)

**۲۱۱ ـ ماده :**

كه څه هم ددعوو داوريدلوصلاحيت په مرافعه محكمه کې دمدعی به دقيمت له حيثه محدودشوی دی دا لاندي دعوی له هغو څخه مستثنی او داستيناف وړدي :

**الف**: د آبْرَوْ حق يادهغه دجوړولودعوی.

**ب** : ددروازې اوكړكيو دبندولو دعوی .

**ج ـ** د شريكو مالونو د قسمت دعوی .

**مادۀ ۲۰۹ :**

رضائيت صريح يا ضمنی صغير، مجنون ، معتوه ، يا ولی ، وصی ، وكيل ، قيم شان اعتبار ندارد ، وكيليكه ازطرف موكل خودصلاحيت قناعت داشته باشد ازماده فوق مستثنی است . (۱)

**مادۀ ۲۱۰ :**

اگر وقت استيناف يكی ازمتخاصمين آنرا قابل استيناف ندانند لازم است كه محكمه مرافعه اول داشتن ونداشتن حق استيناف آنرا تثبيت كند بعد ازآن اصولا در اصل موضوع داخل واقدامات شود ، والا تميز ميتواند نظر بعدم رعايت اصول حكم مذكور را نقض نمايد . (۲)

**مادۀ ۲۱۱ :**

اگر چه صلاحيت استماع دعاوی در محكمه مرافعه ازحيث قيمت مدعی به محدود شده است دعاوی ذيل ازآن مستثنی وقابل استيناف است :

**الف ـ** حق آبرو يا دعوی احداث آن .

**ب** :دعوی مسدود نمودن دروازه وكلكين .

**ج** -دعوی قسمت اموال مشتركه .

(۱) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۵۱۷ ) دررالحكام جـ (۳) صـ (۶۳۷) .

(۲) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ (۱۸۰۰) و ( ۱۸۰۱ ) مِنْ الْمَجَلَّةِ

**د** ـ د شفيع حق كه د شفع د اثبات او كه د شفع له دعوى څخه د امتناع او ترك په صورت كې وي له دعوى څخه فيصله شوې وي .
**هـ** دګاونډي د ودانۍ د لوړوالي دعوى او دهغه د ضرر د دفع غوښتنه .
**و** ـ د بل شخص د هويلۍ خواته د مبرز او ناوې د ضرر د دفع دعوى .
**ز** له مشتركي بيالې څخه دنوي لښتي ښيرول
**ح** ـ دداسي كاريزو ايستل چې دهغه په موجب دبل كاريز د ضررادعا شوې وي .
**تبصره** :
قصاص، دوام حبس ، اعدام دعدلي محكمود اداري اصولنامې له (۲) مادې سره سم او دهغو صغيرانو دعوى چې مدعي يا مدعي عليه واقع شوى وي او د صغيرانو په ضرر پاى ته رسيدلي وي ، ددعوو داوربېدنې د اصول دضميمې سره سم مرافعې او تميز ته وړاندي كيدونكې دي .
**ط** ـ دشرب حق ( حقابه ) .
**ى** ـ د مرور حق .
**ك** : د زمان دمرور دعوى څرنګه چې قانوني حق دى د استيناف وړ بلل كيږي . (۱)

**د**- حق شفعه ، خواه بصورت اثبات شفع ، وخواه بترك وامتناع از دعوى شفعه از دعوى فيصله شده باشد .
**هـ**- دعاوى ارتفاع تعمير همسايه ودر خواست دفع ضرر ازآن.
**و** - دعوى دفع ضرر مبرز ، ناوه طرف حويلى شخص ديگرى .
**ز** - حفر جويچه جديد ازنهر مشترك .
**ح** :حفر قنات كه بموجب آن ضررقنات ديگرى ادعا شده باشد .
**تبصره**:
قصاص ، حبس دوام ، اعدام ، طبق ماده (۲) اصولنامه ادارى محاكم عدلى ودعوى صغاريكه مدعى يا مدعى عليه واقع شده باشد و بضرر صغار انجام يافته باشد مطابق ضميمه اصول استماع دعاوى به مرافعه وتميز تقدم شدنى است .
**ط** ـ حق شرب ( حق آبه ) .
**ى** ـ حق مرور .
**ك**ـ دعوى مرور زمان چون حق قانونى است قابل استيناف شناخته ميشود . (۱)

(۱) : الفتاوي الهندية جـ (٤) صـ ( ١٠٤) . ومبني علي الْمَادَّةِ ( ١٨٠١ ) مِنْ الْمَجَلَّةِ الاحكام .

**۲۱۲ ـ ماده :**

كه دابتدائيه محكمې حكم د استيناف وړ نه وي مرافعه محكمه حق نلري چې د محكوم له دعوى د خسارې د جبران او دتعطيل د ضرر او نورو په موضوع كې واوري دا ډول دعوى داصلي دعوى تابع دي يو ځاى فيصله كيږي . (۱)

**۲۱۳ـ ماده :**

كه محكوم عليهم څو تنه وي اويو له هغوڅخه مرافعه وغواړي په دې صورت كې چې دا حكم د تفريق او تجزيې وړ وګڼل شي نوهغه كسان چې مرافعه يې نه ده غوښتې دهغه شخص له استينافه چې مرافعه يې غوښتې ده مستفيد كيداى نشي . (۲)

**۲۱۴ ـ ماده :**

كه ابتدائيه محكمه دهويلۍ په ويش يا دهغې په نه ويش باندي حكم وكړي اودا هويلۍ ددرې تنو په منځ كې شريكه وي نوكه يوتن له هغو څخه مرافعه وغواړي او دا حكم فسخه شي، څرنګه چې د تجزيې وړ نه دى نو دا نور دوه تنه هم له هغې څخه استفاده كولاى شي . (۳)

(۱) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ ( ۱۸۰۱ ) مِنْ الْمَجَلَّةِ .
(۲) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ ( ۱۸۰۱ ) مِنْ الْمَجَلَّةِ .

**مادۀ ۲۱۲ :**

اگر حكم محكمه ابتدائيه قابل استيناف نباشد محكمه مرافعه حق نداردكه دعوى محكوم له را درموضوع جبران خساره و ضرر وغيره بشنود چنان دعاوى تابع اصل دعوى بوده يكجا فيصله ميشود . (۱)

**مادۀ ۲۱۳ :**

اگر محكوم عليهم چند نفر باشند ويكى ازآنها مرافعه بخواهد در صورتى كه حكم مذكور قابل تفريق وتجزيه شناخته شود كسانيكه مرافعه نخواسته اند ازاستيناف شخصيكه مرافعه خواه است مستفيد شده نميتوانند . (۲)

**مادۀ ۲۱۴ :**

اگر محكمه ابتدائيه بتقسيم حويلى يا عدم تقسيم آن حكم كند وحويلى مذكور بين سه نفر مشترك باشد اگر يكى ازآن مرافعه طلب شود وحكم مذكور فسخ گردد چون قابل تجزيه نيست دو نفر ديگر نيز ازآن استفاده كرده ميتوانند . (۳)

(۳) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ ( ۱۸۰۱ ) مِنْ الْمَجَلَّةِ .

**۲۱۵ ـ ماده :**
که دمړي پرذمه مستغرقه مثبت پورونه وي يعني متروکه مال يي دپوروالوله پورونوزيات نه وي اويوتن له پوروالاوو نه دګـروي دتوثيق له مخـي خپل پور وړاندي وبولي اوابتدائيه محکمه برله دهغه حکم وکړي ورثه په هغې موضوع کې داستيناف حق نلري اوکه نور پور والا مرافعه وغواړي داستفادې حق لري. (۱)

**۲۱۶ ـ ماده :**
که په يوکفيل باندي د پور دعوی وشي اوابتدائيې محکمې د کفيل په برائت باندي حکم کړی وي اصل پوروړئ له هغه څخه استفاده نشي کولای . (۲)

**تبصره :**
په پورتنـي صورت کې اصل پور وړی د اسـتيناف حق نـلري، د کـفيل بـرائت د اصيل برائـت نه دی مګـر د اصـــيل برائت د کفيل برائت دی . (۳)

**۲۱۷ ـ ماده :**
که يوکس د دوو تنو پر ذمه دپور دعوی وکړي يو يي حاضر شي او بل يي غائب وي مدعي په حاضر شخص باندي =

**مادۀ ۲۱۵ :**
اگـر بـذمه مـتوفی ديون مسـتغرقه مثبته باشد يعنی مال متروکه متجاوز از حقوق دائنين نباشد ويکی از دائنان بنا بـرتوثـيق رهن دين خود را مقدم تر بـداند ومحکمه ابـتدائيه برله آن حکم کند ورثه درآن موضوع حق استيناف ندارد واگردآئنان ديگر مرافعه بخواهند حق استفاده دارد . (۱)

**مادۀ ۲۱۶ :**
اگـر دعـوی ديـن بـرعليه کفيل شده ومحکمه ابتدائيه به برآئت کفيل حکم نموده باشد اصل مديون ازآن استفاده نميتواند . (۲)

**تبصره:**
در صـورت فـوق اصل مـديون حـق اسـتيناف نـدارد بـرآئت کـفيل برآئت اصيل نـيست ، وبـرآئت اصيل بـرآئت کفيل است . (۳)

**مادۀ ۲۱۷ :**
اگر کـسی بـرذمه دو نـفر دعوی دين کند يکی حاضر شود وديگری غائب باشدومدعی برعليه شخص حاضر =

(۱) : الهندية جـ (٦) صـ (٤٤٧) .
(۲) : الْمَادَّةُ (٦٦١) مجلة الاحكام .
(۳) : الْمَادَّةُ (٦٦٢) مجلة الاحكام .

=خپله دعوی دائره کړي او ابتدائیه محکمه پر مدعي باندي حکم اوله دغې دعوی څخه امتناع وکړي نو مدعي پر غائب شخص د استیناف حق نلري. (١)

**٢١٨ـ ماده :**

هغه شخص چې دابتدائیه محکمې له حکم څخه وروسته محکوم علیه واقع شوی دی او په خپله رضا او رغبت محکوم به محکوم له ته وسپاري ، داستیناف حق نه لري . (٢)

**٢١٩ ـ ماده :**

څرنګه چې دمرافعې حکم دمحکمو آخرینی حکم دی او دهغې حکم قطعیت مومي نولازم دی چې دا حکم دخصمینو په مخکي صادر شي . (٣)

**تبصره :**

په هغوموارد وکې چې شرعا غیابي حکم کیږي له پورتنۍ مادې څخه مستثنی دي . (٤)

*****

***

=دعوای خودرا دآئرکند و محکمه ابتدائیه بر علیه مدعی حکم و از دعوی مذکور امتناع کند مدعی برشخص غائب حق استیناف ندارد . (١)

**مادۀ ٢١٨ :**

شخصیکه بعد از حکم محکمه ابتدائیه محکوم علیه واقع شده است و برضا ورغبت خود محکوم به را به محکوم له میسپارد حق استیناف ندارد . (٢)

**مادۀ ٢١٩ :**

چون حکم مرافعه حکم آخرین محاکم است حکم آن قطعیت می یابد لازم است حکم مذکور بمواجهه خصمین صادر گردد . (٣)

**تبصره:**

در مواردی که شرعًا حکم غیابی صورت میگیرد از ماده فوق مستثنی است . (۴)

*****

***

*

(١) : شرح الْمَادَّةُ (١٨٣٠) الاتاسي جـ (٦) صـ (١٣٦) .

(٢) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ (١٨٠١) مِنْ الْمَجَلَّةِ .

(٣) : الْمَادَّةُ (١٨٣٠) مجلة الاحكام . تكملة ردالمحتار جـ (١) صـ (٣١٣) .

(۴) : شرح المادة (١٨٣٤) دررالحكام . جـ (٤) صـ (٦٨٠) . { من مادة (٢٢٠) الى المادة (٢٣٢) مَبْنِيٌّ عَلَى مَادَّتِي (١٨٠٠) و (١٨٠٠) مِنْ الْمَجَلَّةِ }.

## د تمیز ریاست

**۲۲۰ ـ ماده** :

تمـیز په دریو اساسي څانګو ویشل کیږي :

**الف** : د استدعا څانګه (د تمیز د تحریراتو مدیریت ).

**ب** : د حقوقو څـانګه .

**ج** : د جزا څـانـګه .

**۲۲۱ ـ ماده** :

د استد عا د څانګي وظیفه : ـ

**الف** : دا دائره د تمیز د مستدعي استدعا ګوري او د مرافعـې د فیصلـې نیټه او محکوم علیه ته دفیصلې د تفهیم نیټه اووده د تمیزغوښتني نیټه ګوري نو هغه وخت د مستد عي د تمیز غوښتني د رد یا قبول په موجباتوکې نظریه څرګنده وي او خپل نظریات سره دهغو له دلائلو د ریاست مقام ته وړاندي کوي .

**ب** : کوم موضوعات چې تمیز ته راځي نو لومړی همدې دائرې ته راځي .

**ج** : هغه دعوی چـې د زمانـې په مرور او د دعووپه نه اوریدو پوري اړه لري ملاحظه کوي او وروسته له زیات غور څخه دخپلو معلوماتو لـنډیز سره له اصلي دوسـیې د ریاسـت مـقام ته وړاندي کوي .

## ریاست تمیز

**مادۀ ۲۲۰** :

تمیز به سه شعبه اساسی تقسیم میشود:

**الف** : شـــعبه اســتدعا ( مدیریت تحریرات تمیز ) .

**ب** : شعبه حقوق .

**ج** : شـعبه جزا .

**مادۀ ۲۲۱** :

وظیفه شعبه استدعا :

**الف** ـ این دائره استدعای مستدعی تمیز را می بیند وتاریخ فیصله مرافعه رابا تاریخ تفیهم فیصله به محکوم علیه وتاریخ تمیز خواهی اورامطالعه میکند آنــگاه در موجبات رد یا قبول تــمیز خواهــی مستدعی ابراز نظر مینماید ونـظریات خود را با دلائل آن بــمقام ریاست تقدیم میکند .

**ب** : موضوعیکه خود بخود به تمیز وارد میشود نخست دراین دآئره میآید .

**ج** : دعاوی را که بمرور زمان وعدم اســتماع دعاوی تعلق دارد ملاحــظه میکندبعد ازغورمزید خلاصه معلومات خود را با اصل دوسیه بمقام ریاست تقدیم میدارد .

**د** : د محکمې صلاحیت چې حکم کوي او دهغې نه صلاحیت .

**هـ** : هغه احکام چې په قرائنو او اماراتو فیصله شوي دي په هغو کې ژوره کتنه کوي وروسته د قرائنو له توضیح دهغو د پیشنهاد لنډیز سره له اصل تصویب د ریاست مقام ته وړاندي کوي .

**و** : ددعوو ارجاع د تمیز د مجلس په نظر یه حاکمي محکمې یا دهغې مماثلو ته .

**ز** : د حقوقي او جزايي فقرو ویش او سپارل دهغو څانګو ته د هغو موضوعاتو تعقیب چې معطل پاتي شي او دڅانګي د نتائجو اخبار خپلي مرجع ته .

**۲۲۲ ـ ماده** :

د تحریري چارو په نواقصو او دمقصد په انحراف او ددلائلو نښودلو نه په سترګې پټولو کې دتحریراتو مدیریت مسؤلیت لري .

**۲۲۳ ـ ماده** :

دمجلس منشي ( دتحریراتو مدیر ) برسیره په هغو وظیفو چې لري یې د دوسیو ،فیصلو او هغو نتیجو په لوستلو چې په لاس یې راوړې دي موظف دی .

**۲۲۴ ـ ماده** :

د مجلس منشي ( د تحریراتو مدیر ) ددوسیو او فیصلو په تنظیم او ترتیب او د استدعاؤ په ترتیب او دوړاندي=

**د** : صلاحیت محکمه که حکم نموده وعدم صلاحیت آن .

**هـ** : احکامی که بقرآئن وامارات فیصله شده باشد درآن دقت نموده بعد از توضیح قرآئن خلص پیشنهاد آنرا با اصل تصویب بمقام ریاست تقدیم میدارد .

**و** : ارجاع دعاوی به نظریه مجلس تمیز به محکمه حاکمه یا مماثل آن .

**ز** : تقسیم وسپردن فقرات حقوقی وجزائی به شعبات آن وتعقیب موضوعات که به تعویق افتد واخبار نتائج شعبه بمرجع آن .

**مادۀ ۲۲۲** :

درنواقص امورتحریری وانحراف مقصد ، واغماض از نشان دادن دلائل ، مدیر تحریرات مسئولیت دارد .

**مادۀ ۲۲۳** :

منشی مجلس ( مدیر تحریرات ) علاوه بر وظائفیکه دارد بقرآئت دوسیه وفیصله ها ونتیجه که ازآن بدست آورده است مؤظف میباشد .

**مادۀ ۲۲۴** :

منشی مجلس ( مدیر تحریرات ) به تنظیم وترتیب دوسیه ها وفیصله ها =

= والي او وروسته والي دحق په ساتنه او دپاڼو په ساتنه مکلف دی. (۱)

## د حقوقو د څانګي وظايف

**۲۲۵ ـ ماده :**

د حقوقو د څانګي وظيفه په حقوقي فيصلې کې ژوره کتنه کول او د هغو د پيشنهاد لنډيزسره دموضوع له فيصلې د مجلس د منشي (د تحريراتو مدير) په ذريعه د رياست مقام ته وړاندي کول او وروسته دموضوع له تصفيې مکتوب د لوړمقام په لاسليک رسول او د هغو مرجع ته خبر ورکول دي.

**تبصره :**

له پورتنۍ مادې څخه اضطراري حالات مستثنی دي.

***

= وترتيب استدعا هاوحفظ حق تقديم وتاخيرومحافظه اوراق مکلف است. (۱)

## وظائف شعبهء حقوق

**مادۀ ۲۲۵ :**

وظيفه شعبه حقوق در فيصله های حقوقی غورنمودن وخلص پيشنهاد آنرا بافيصله موضوع ذريعه منشی مجلس (مدير تحريرات) بمقام رياست تقديم داشتن وبعد از تصفيه موضوع مکتوب آنرابامضاء مقام عالی رسانيدن وبمرجع آن خبرداده است.

**تبصره:**

حالات اضطراری ازحکم ماده فوق مستثنی است.

***

(۱) : له (۲۲۰) مادې څخه تر (۲۳۲) مادې پوري د مجلة الاحکام په (۱۸۰۰ ــــــــ ۱۸۰۱) مادو بناء دي.

## د جزا د څانګي وظايف

**۲۲۶ ـ ماده** :
دجزا دڅانګي وظيفه دجزايي فيصلو تر غورلاندي راوستل او وروسته داصولي دلائــلواوشرعــي موجباتو له معلوماتو دهغولنډيزسره له اصلي فيصلې دمجلس دمنشي ( د تحريراتومدير ) په ذريعه د رياست مقام ته وړاندي کول اودتصويب نتيجه د لوړمقام له خوا دهغه مکتوب له لاسليک کولونه وروسته دهغه مرجع ته خبر ورکول دي .

**تبصره** :
له پورتنۍمادې څخه اضطراري حالات مستثنی دي .

**۲۲۷ ـ ماده** :
څرنګه چې د تميز د رياست د مجموعي هيئت مسؤليت سره مشترک دی نو د تميز غړي د اصولي او شرعي منابعو د پيداکولو په موضوع کې او دشرعي د لائلوپه استنباط او اصولي موادوکې او په نتيجه اخيستلواودموضوع دتصويب په تــسويد کــې د رياست له مـقام سره وظيفتًا همکاري کوي .

## وظـائف شـعبه جـزا

**مادۀ ۲۲۶** :
وظيفه شعبه جزا فيصله های جزائی را تــحت دقــت قــرار دادن وبــعد از معلـومات دلائــل اصولــی وموجبات شرعی خلاصه آنرا بااصل فيصله بوسيله منشی مجلس ( مدير تحريرات ) بمقام رياست تقديم داشتن ونتيجه تصويب را بــعد از امضاء مکتوب آن از طرف مقام عالی بمرجعش خبردادن است .

**تبصره**:
حالات اضطراری ازحکم ماده فوق مستثنی است .

**مادۀ ۲۲۷** :
چون مسئوليت هيئت مجموعی رياست تمــيز مشــترک است اعضاء تميز در موضوع يافتن منابع اصولی وشرعی و اســتنباط دلائل شرعــی ومواد اصولی ونتيجه گرفتن وتسويد تصويب موضوع بامقام رياست وظيمتًا هکاری مينمايد .

***

**۲۲۸ـ ماده :**

د تمیز غړي د احکامو په بې ځایه استعمال او په اصولي او شرعي موادو کې په نه دقت او په بې اساسه تصویب او بې مورده نظریه ورکولو کې مسؤل دي.

**۲۲۹ـ ماده :**

د مجلس د نظم او نسق او اداري وظیفه او د موضوعاتو ترتیب او د شرعي او اصولي تطبیق د تمیز رئیس ته سپارل شوي دي .

**۲۳۰ـ ماده :**

رئیس کولای شي برسیره د تمیز د مجموعي هیئت د ټولنې له نورو علماؤ څخه هم استشاره وکړي .

**۲۳۱ـ ماده :**

که تمیز په خپل تصویب کې په مذهبي جزئیاتو او قانوني موادو اتکاء وکړي ، هغه دې صریحا په خپلو مصوبه کې د عدلي محاکمو د اداري اصولنامې له ( ۲۷۷ ) مادې سره سم ذکر کړي . (۱)

**۲۳۲ـ ماده :**

په دعوی، ځواب ، شهادت ، اعتراض ، تردید او مرافعه کې که په خپله اشخاص تقاضا وکړي چې هغه په خپل قلم ولیکي کوم ممانعت نلري . (۲)

**مادۀ ۲۲۸ :**

اعضای تمیز در استعمال بی جای احکام وعدم دقت در موارد اصولی وشرعی وتصویب بی اساس ونظریه دادن بی مورد تمیز مسئولند .

**مادۀ ۲۲۹ :**

وظیفه اداره ونظم ونسق مجلس وترتیب موضوعات وتطبیق شرع واصول برئیس تمیز مفوض است .

**مادۀ ۲۳۰ :**

رئیس میتواند که علاوه از اجتماع هیئت مجموعی تمیز از علمای دیگر نیز استشاره نماید .

**مادۀ ۲۳۱ :**

اگر تمیز در تصویب خود اتکا به جزئیات مذهبی و مواد قانونی کند آن را صریحًا در مصوبه خود طبق ماده ( ۲۷۷ ) اصولنامه اداری محاکم عدلی ذکر نماید . (۱)

**مادۀ ۲۳۲ :**

در دعوی و جواب و شهادت واعتراض وتردید مدافعه اگر خود اشخاص تقاضا نمایند که آنرا بقلم خود بنویسد کدام ممانعتی ندارد . (۲)

(۱):له (۲۲۰) مادې څخه تر(۲۳۲) مادې پورې دمجلة الاحکام په (۱۸۰۰ ــــــــــ ۱۸۰۱) مادو بناء دي.

(۲) : المادة (۱۸۱۶) مجلة الاحکام ، الهندیة جـ (۳) صـ (۴۶۲) .

**۲۳۳ ـ ماده :**

كه تميز ديو شخص احضارته ضرورت ولري اجرائيه قوې ته مراجعه كولاى شي . (۱)

**۲۳۴ ـ ماده :**

كه محكمې دبيع په صحت حكم كړى وي او په هغه كې دعقد مفسد شرط وي ، يا نسبت د صحت شهودوته دمرض دشهودوپه ترجيح حكم شوى وي يا دحدوث پرشهودو دقدم شهودوته يا د زياتوالي پر شهودو د نقصان شهودوته ترجيح او د تقديم حق يې موندلى وي، نو موضوع د تميز د غوروړ او ارجاع موجب دى . (۲)

**۲۳۵ ـ ماده :**

كه دعوى له مطلق ملكيت څخه وي د ذواليدى شاهدان په هغې كې راوستل شوي نه وي ، موضوع د تميز دغور وړ او د ارجاع موجب ده . (۳)

**۲۳۶ ـ ماده :**

كه هغه اسناد چې خصمينو را وړي وي نه كټمټ اونه دلنډيز په ډول په فيصله كې ذكر شوي وي اوپرهغه باندي حكم ترتيب شوى وي دتميز دغوروړاودارجاع موجب ده . (۴)

**مادهٔ ۲۳۳ :**

اگر تميز به احضار شخصى ضرورت داشته باشدبقوه اجرائيه مراجعه كرده ميتواند . (۱)

**مادهٔ ۲۳۴ :**

اگر محكمه حكم بصحت بيع كرده باشد و دران شرط مفسد عقد باشد يا حكم به ترجيح شهود مرض نسبت به شهود صحت شده باشد يا شهود قدم برشهود حدوث يا شهود نقصان برشهود زيادت ترجيح وحق تقدم يافته باشد موضوع قابل غور تميز وموجب ارجاع است . (۲)

**مادهٔ ۲۳۵ :**

اگر دعوى از ملكيت مطلق بوده شهود ذواليدى درآن آورده نشده باشد موضوع قابل غور تميز وموجب ارجاع است . (۳)

**مادهٔ ۲۳۶ :**

اگر اسناديكه خصمين آورده باشند نه عينًا ونه بطورخلاصه درفيصله ذكر شده باشد وبرآن ترتيب حكم شده باشد قابل غور تميز وموجب ارجاع است . (۴)

---

(۱) : شرح الْمَادَّةُ (۱۸۳۳) دررالحكام جـ (٤) صـ (۶۷۶) والاتاسى جـ (۶) صـ (۱۵۱).

(۲) :الْمَادَّةُ (۱۸۳۹) و (۱۷٦٦) و (۱۷٦۸) و (۱۷٦۲) مجلة الاحكام .

(۳) : الْمَادَّةُ (۱۷٥٤) مجلة. وشرح الْمَادَّةُ (۱۸۱۷) سليم باز. جـ (۲) صـ (۹۰٥) . تكملة ردالمحتار جـ (۱) صـ (۳۲۹) .

(۴): شرح الْمَادَّةُ (۱۸۱٤) دررالحكام جـ (٤) صـ (۶۲۱) .

**۲۳۷ ـ ماده :**
که د ملزمو شهودو تزکیه نه وي شوې، د تمیز د غور وړ او د ارجاع موجب دی. (۱)

**۲۳۸ ـ ماده :**
که د مرافعې محکوم له یا محکوم علیه د تمیز له تصویبه پخوا فوت شي په هغو حقوقوکې چې ورثې ته انتقال مومي د تمیز حق یې ورثې ته نقل کیږي . (۲)

**۲۳۹ ـ ماده :**
محکوم علیه نشي کولای چې له فیصلې څخه خارج پر دریم شخص باندي تمیز وغواړي . (۳)

**۲۴۰ ـ ماده :**
که محکوم علیه د تمیز د میعاد له تیریدو نه وروسته فوت شي دده ورثه د تمیز حق نلري (۴)

**۲۴۱ ـ ماده :**
که د دعوی شرعي شروط او د شهادت اساسي شروط او نور هغه شیان چې دیوې شرعي صورت دعوی لازم وي د مرافعې په فیصله کې ونه لیدل شي که څه هم معترض اعتراض پرې نه وي کړی د تمیز وړ ده . (۵)

**مادۀ ۲۳۷ :**
اگر تزکیه شهود ملزمه نشده باشد فیصله قابل غور تمیز و موجب ارجاع است . (۱)

**مادۀ ۲۳۸ :**
اگر محکوم له یا محکوم علیه مرافعه قبل از تصویب تمیز فوت گردد در حقوقی که بورثه انتقال می یابد حق تمیز بورثه اش نقل می یابد . (۲)

**مادۀ ۲۳۹ :**
محکوم علیه نمیتواند که تمیز را برعلیه شخص ثالث خارج از فیصله خواسته باشد . (۳)

**مادۀ ۲۴۰ :**
اگر محکوم علیه بعد از انقضای میعاد تمیز فوت گردد ورثه اش حق تمیز را ندارد . (۴)

**مادۀ ۲۴۱ :**
اگر شروط شرعی دعوی و شروط اساسی شهادت وغیره چیزهائیکه لازمه یک صورت دعوی شرعی باشد در فیصله مرافعه دیده نشود اگرچه معترض اعتراض نکرده باشد قابل تمیز است .(۵)

(۱) : تنقیح حامدیة جـ (۱) ص (۳۳٤) .

(۲) : الْمَادَّةُ ( ١٦٤٢ ) مجلة الاحکام .

(۳) : شرح المادة (۱۸۳۰) الاتاسی جـ (۶) صـ (۱۳۶) .

(۴) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ ( ۱۸۰۱ ) مِنْ الْمَجَلَّةِ .

(۵) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۸ ) مَجَلَّةِ الاحکام . والاتاسی جـ (۶) صـ (۱۶۵) .

**۲۴۲ ـ ماده :**

که په دعوی اوددعوی ځواب ،شهادت ، دفعه ، جرحه شرعي او دحکم په موقع کې دشرعي او اصولي مقرراتو په خلاف رفتارشوی وي موضوع دتميز وړده.(۱)

**۲۴۳ ـ ماده :**

ټول هغه صلاحيتونه چې مرافعه محکمه يې لري پرته د دعوی له عمومي دوران څخه تميز هم دهغې صلاحيت لري . (۲)

**۲۴۴ ـ ماده :**

که اختلاف د تميز دحق په موجوديت اونه موجوديت ، يا ئي د ميعاد په تېرېدو او نه تېرېدو په منځ کې راغی نو تميز کولای شي چې لومړی هغه تصفيه کړي پس له هغه يي په اساس کې غور او دقت وکړي . (۳)

**۲۴۵ ـ ماده :**

که محکموته په راغليوفقروکې په کوم داسې شي استناد شوی وي چې هغه حقيقت ونلري اويا په قرائنو اتکاء کړي وي اوهغه شرعي قرينه ونه بلله شي او يا کوم تناقض وليدل شي نو موضوع د تميز وړ او د نقض موجب ده . (۴)

**مادۀ ۲۴۲ :**

اگر خلاف مقررات شرعی واصولی دردعوی وجواب وعوی وشهادت ودفع وجرح شرعی وموقع حکم رفتار شده باشد موضوع قابل تميز است . (۱)

**مادۀ ۲۴۳ :**

تماماً صلاحيت هائيکه محکمه مرافعه دارد باستثنای دوران عمومی دعوی تميز هم صلاحيت آنرا دارد . (۲)

**مادۀ ۲۴۴ :**

اگر اختلاف در موجوديت حق تميز وعدم موجوديت ويا انقضای ميعاد وعدم انقضای ميعاد آن در بين آمد تميز ميتواند اولتر آنرا تصفيه نموده پس ازآن در اساس آن غور ودقت نمايد . (۳)

**مادۀ ۲۴۵ :**

اگر درفقرات وارده محاکم بچيزی استنادشده باشدکه آن حقيقت نداشته باشد ويا بقرآئن اتکاء وآن قرينه شرعيه شمرده نشود وياکدام تناقض بمشاهده برسد موضوع قابل تميز وموجب نقض است . (۴)

(۱) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۸ ). مَجَلَّةِ الاحكام .

(۲) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ (۱۸۰۰) و (۱۸۰۱) مَجَلَّةِ الاحكام .

(۳) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ (۱۸۰۰) و (۱۸۰۱) مَجَلَّةِ الاحكام .

(۴) : الْمَادَّةُ ( ۱٦۲۹ ) و ( ۱۷٤۰ ) مجلة الاحكام . والهندية جـ (۴) صـ (۲) .

**۲۴۶ ـ ماده :**
ځرنګه چې دابتدائيې اومرافعې دشرعي او اصولي د لائلوپه منځ کې تميز کول اودطرفــينو د دلائــلوقــوت اوضـعف معلومول دتميز وظيفه ده نــو لازم دی چــې د دواړو خواوو دلائــل په فــيصله کــې واضح داخل وي، او ددوی استناد په مذهبي جزئياتو ولاړ او اصولي وي ، تر څو تمــيز په ښــه شان سره وکولای شي چې په هغې حکميت وکړي فيصله تائيد يانقض اوترديد يا ارجاع کړي. (۱)

**مادۀ ۲۴۶ :**
چون تمــيز نمودن بــين دلائل شرعی واصولی ابــتدائيه ومرافـعه ومـعلوم نـمودن قـوت وضعف د لائـل طرفــين وظيفه تمــيز است ، لازم اسـت دلائـل طرفــين واضح در فــيصله شان داخل بوده واســتناد شـان بجزئـيات مذهبی واصولی باشد تا تميز بخوبــی بــتواند در آن حکميت نـموده فـيصله را تائيد يا نقض وترديد يا ارجاع نمايد . (۱)

**۲۴۷ ـ ماده :**
ځرنګه چې دتميز اساس دشکايت د رفع اودعدالت په اصلي محور دعدلي چارو دجريان په غرض دی ، نو لازم دی چــې د تميز رياست د معترضينو اعتراضات که بالذات ياپه واسطه سره وي وړاندي کيږي قبول کړي . (۲)

**مادۀ ۲۴۷ :**
چون اساس تميز بغرض رفع شکايت وجريان امورعدلی بمحوراصلی عدالت است لازم است رياست تميز اعتراضات معترضين را خواه بالذات يا بالواسطه تقديم ميشود بپذيرد . (۲)

**۲۴۸ ـ ماده :**
تميز د معترضينو اعتراضات د شکايت د رفع په غــرض ردًا يا قــبولاً په خــپل تصويب کې داخلوي . (۳)

**مادۀ ۲۴۸ :**
تميز اعتراضات معترضين را بغرض رفع شکايت ردًا يا قبولا داخل تصويب خود مينمايد . (۳)

(۱) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ (۱۸۰۰) و (۱۸۰۱) مَجَلَّةِ الاحکام .
(۲) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ (۱۸۰۰) و (۱۸۰۱) مَجَلَّةِ الاحکام .
(۳) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ (۱۸۰۰) و (۱۸۰۱) مَجَلَّةِ الاحکام .

**۲۴۹ ـ ماده :**

دهغو اعتراضاتو او دلائلو او اسنادو چې دوا ړو خواؤ وړاندي کړي وي ترديد يا قبول دي ماده په ماده ددوی په تصويب کې وي (۱)

**۲۵۰ ـ ماده :**

د حقوقو او دجزا دڅانګي آمرين هم پخپل وار د خپل صلاحيت سره سم مسؤليت لري . (۲)

**۲۵۱ ـ ماده :**

هغه فيصلې چې د تميز وړ نه دي : ـ

**الف** ـ هغه احکام چې په صريح اقرار يا ابرآء مستند وي او تميز غوښتونکی يوازي له اقرار او ابرآء څخه له خپل حضور څخه انکار کوي او قوي دلائل چې وثيقه مشبوهه کړي ونلري او يا په نه حضور اونه اقرار باندي متواتره نفی موجوده نه وي . (۳)

**ب** ـ دهغه حَکَم ،حُکم چې دواړو خواؤ په خپله رضا ددغه حَکَم پر قاطع والي اقرار ورکړی وي .

**ج** ـ دواړو خواؤ تعهد کړی وي او ددوی تعهد رسمي صورت موندلی وي چې زموږ دتميز حق ساقط دی . (۴)

**مادهٔ ۲۴۹ :**

ترديد يا قبول اعتراضات و دلائل و اسنادی که جانبين ارائه کرده باشند ماده به ماده در تصويب شان باشد . (۱)

**مادهٔ ۲۵۰ :**

آمرين شعبه حقوق وجزاء بنوبت خود حسب صلاحيت شان نيز مسئوليت دارند . (۲)

**مادهٔ ۲۵۱ :**

فيصله هائيکه قابل تميز نيست :

**الف** ـ احکامی که مستند باقرار صريح ويا ابرآء باشد وتميز طلب تنها از اقرار وابرآء از حضور خود انکار باشد ودلائل قوی که وثيقه را مشبوه بسازد نداشته باشد ويا نفی متواتر برعدم حضور وعدم اقرار موجود نباشد . (۳)

**ب** ـ حکم حکمی که طرفين برضائيت خود برقاطع بودن حکم مذکور اقرار داده باشند .

**ج** ـ طرفين تعهد نموده باشند وتعهد شان صورت رسمی يافته باشد که حق تميز ما ساقط است. (۴)

---

(۱) :مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ (۱۸۰۰) و (۱۸۰۱) مَجَلَّةِ الاحكام.

(۲) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ (۱۸۰۰) و (۱۸۰۱) مَجَلَّةِ الاحكام.

(۳) : المادة ( ۱۷۳۸ ـــ ۱۸۲۱ ـــ ۱۶۹۹) .مجلة الاحكام .

(۴) : الْمَادَّةُ ( ۱۶۰۶ ) و( ۶۹ ) مجلة الاحكام .وشرح الْمَادَّةُ ( ۱۵۸۷ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (۹۸) .

**۲۵۲ ـ ماده :**

د تميز د رويت وړ اساسي او دفيصلې د نقض موجبه مواد په لاندي ډول دي :

**الف ـ** هغه فـيصلې چې د استيناف وړوي خو دمـيعاد دتـيريدو له امله ئـي دقطعيت حکم موندلی وي .

**ب** : د استيناف دمحاکمو قطعي احکام (۱)

**تبصره :**

په دې کې چې حکم قطعي دی يا قطعي نه دی اصل واقع او حقيقت اعتبار لري نه د محکمې فيصله . (۲)

**۲۵۳ ـ ماده :**

که داستيناف محکمه دمرافعي استدعا قبوله کړي هغه اسباب اوعلل چې مقابل جانب دقانوني شروطو له نشتوالي څخه ويلي وي رد کړي د تميز وړ دی . (۳)

**۲۵۴ ـ ماده :**

که دمرافعې فيصله مختلف اجزاء ولري يوه برخه ئي داستيناف وړوي اوځينې دې په قطعــي ډول وکتلـی شـي ، هغه اعتراض چې ددعوی پراساس پيشنهاد شي، د تميز وړ دی . (۴)

**مادهٔ ۲۵۲ :**

مواد اساسی قابل رويت تميز وموجب نقض فيصله قرار آتی است :

**الف** ـ فـيصله هائـيکه قابل اسـتيناف بوده ولـی از حيث انقضای ميعاد حکم قطعيت يافته باشد .

**ب** : احکام قطعی محاکم استيناف (۱)

**تبصره:**

در اينکه حکم قطعـی است يا قطعــی نيست اصل واقع و حقيقت اعتبار دارد نه فيصله محکمه . (۲)

**مادهٔ ۲۵۳ :**

اگرمحکمه استيناف استدعای مرافعي را قبول نموده اسباب وعللی که جانب مقابل از عدم شروط قانونی گفته باشد رد نمايد قابل تميز است. (۳)

**مادهٔ ۲۵۴ :**

اگر فيصله مرافعه اجزاء مختلفه داشته باشــد برخـی قابل استيناف وبعضــی بدرجه قطعــی ديــده شود اعتراضيکه بــر اساس دعوی پــيشنهاد شود قابل تميز است . (۴)

(۱) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مجلة الاحکام .
(۲) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مجلة الاحکام .

(۳) : المادة (۱۸۳۹) مجلة الاحکام .
(۴) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

**۲۵۵ ـ ماده :**

دتـميز محكمه پرته دعدلي محاكمو د اداري اصولنامې له (۲۶۳) مادې چې په دريمه مرتـبه كـې يـې ددوران حق وركړی، غير له هغه ددوران حق نه لري ، يوازي دفيصلو په منځ كې د صحت او سقم تميزكوي نوتائيد يا ترديد اوارجاع كـوي دصورت دعـوى (صورت حال ) ليكلو ته هم ضرورت نـشته ، دفـيصلې په ليكلواودهغې په ثبت كفايت كيداى شي (۱)

**۲۵۶ ـ ماده :**

دتميزمحكمه نشي كولاى چې په حقوقي يا جزائي قضيوكې دفيصلو اونوروپرشا خپله نظريه يا تصويب وليكي بلكې د تميزپرمخصوصه فيصله تحرير اوتثبت كيږي . (۲)

**۲۵۷ ـ ماده :**

كه مدعي پر اصل دين دعوى وكړي او يا يوه له ماتحتو محكمو څخه دهغه په منفعت حكم وكړي يادخساري په جبران حكم وكړي اومدعي دهغوادعا نه وي كړې يا مدعي دعاريت داسترداد ادعا كړې وي اودې محكمودهغه په قيمت =

**مادهٔ ۲۵۵ :**

محكمه تميز بـاسـتثناى ماده (۲۶۳) اصولنامه اداری مـحاكم عـدلـی كه در مرتـبه سوم حق دوران داده درغـير آن حق دوران را ندارد تنها بين فيصله ها تميز صحت وسقم نموده تائيد ترديد و ارجاع مينمايد به تحرير صورت دعوى (صورت حـال ) نيز ضرورت نيست بـه تحـرير فيصله وثبت آن كـفايت شـده ميتواند . (۱)

**مادهٔ ۲۵۶ :**

محكمه تميز نميتواند در قضاياى حقوقى يا جزائى نظريه با تصويب خود را برپشت فيصله وغيره تحرير نمايد بلكى بر فيصله مخصوص تميز تحرير وتثبيت ميشود . (۲)

**مادهٔ ۲۵۷ :**

اگر مدعى بر اصل دين دعوى كند ويا يكى از محاكم ماتحت به منفعت آن حكم نمايد يا حكم بـجبران خساره كند ومدعى ادعاى آنرا نكرده باشديامدعى ادعـاى اسـتردادعاريت نموده ومحاكم مذكور حكم بقيمت آن كرده باشـد =

---

(۱) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۸ ) دررالحكام جــ (٤) صــ (٦٩٠) .

(۲) : مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّةِ ( ۱۸۰۱ ) مِنْ الْمَجَلَّةِ .

= قیمت باندي حکم کړی وي او مدعي دهغه قیمت نه وي غوښتی نو موضوع د تمیز وړ او ارجاع موجب ده . (۱)

**۲۵۸ ـ ماده :**
که مدعي اومدعي علیه په ځمکه کې تنازع فی الید ولري او محکمه دځمکي د مدعي علیه دپاره حکم وکړي د تمیز وړ او ارجاع موجب ده . (۲)

**۲۵۹ ـ ماده :**
داصلي دعوی له اثبات څخه وروسته که له مدعی بها څخه په زیاتو یا له هغې څخه په لیږو حکم شوی وي د تمیز وړ او دارجاع موجب ده . (۳)

**۲۶۰ ـ ماده :**
که په مرافعه محکمه کې دمدعي ددعوی په منعه حکم شوی وي له دې کبله چې دعوی یي ثبوت ته نه ده رسولې دمدعي علیه تحلیف یي نه وي غوښتی او څرګنده وي چې له مدعي څخه یي شهود نه دي غوښتي او په تحلیف او نوروکې یي له هغه نه پوښتنه نه ده کړي د تمیز دغور وړ او دارجاع موجب ده . (۴)

= ومدعی قیمت آنرا نخواسته باشد موضوع قابل تمیز وموجب ارجاع است . (۱)

**مادهٔ ۲۵۸ :**
اگر مدعی ومدعی علیه در زمین تنازع فی الید داشته باشد ومحکمه زمین را برای مدعی علیه حکم نماید قابل تمیز وموجب ارجاع است . (۲)

**مادهٔ ۲۵۹ :**
اگر به زیادت از مدعی بها یاکم از آن بعد از اثبات اصل دعوی حکم شده باشد قابل تمیز وموجب ارجاع است . (۳)

**مادهٔ ۲۶۰ :**
اگر در محکمه مرافعه به منع دعوی مدعی حکم شده باشد از جهت اینکه دعوی را به ثبوت نرسانیده وتحلیف مدعی علیه را نخواسته باشد وظاهر باشد که از مدعی شهود نخواسته ودر تحلیف وغیره از او نپرسیده قابل غور تمیز وموجب ارجاع است . (۴)

---

(۱) :جواهرالروایات صــ (۲۱).والمادة (۱۸۳۹) مجلة الاحکام .

(۲) : الْمَادَّةُ (۱۷۵۵) مجلة الاحکام.الکاملیة صــ (۱۱۵) الهندیة فصل في التنازع في الایدي جــ (٤) صــ (۹۳) .

(۳) : المادة ( ۱۸۲۹) مجلة الاحکام . شرح المادة (۱۱۲۷) دررالحکام جــ (۳) صــ (۱۲۷) .

(۴) : المادة (۱۸۱٦ ـــــــ ۱۸۱۷ ـــــــ ۱۸۱۸ ـــــــ ۱۸۱۹ ـــــــ ۱۷٤٦ ـــــــ ۱۸۳۸) مجلة الاحکام